

# ملي سرود

دا وطن افغانستـــان دی
کور د سولې کور د تورې
دا وطن د ټولـو کور دی
د پښتـون او هــزاره وو
ورسـره عرب، گوجـر دي
براهوي دي، قزلباش دي
دا هېـــواد به تل ځلیږي
په سـینـه کې د آسـیـا به
نوم د حق مـو دی رهبـر

دا عــزت د هـر افغان دی
هر بچی یې قهرمـــان دی
د بــلـوڅـــو د ازبکـــو
د تـرکمنـــو د تـاجکـــو
پـامیریـان، نورسـتانیـان
هـم ایمـاق، هم پشه یان
لکه لمر پر شـنـه آسـمان
لکــه زړه وي جـاویـــدان
وایــو الله اکبر وایو الله اکبر

# د کتاب ځانګړتیاوې

---

مضمون: تاريخ

مؤلفين: د تعليمي نصاب د تاريخ ديپارتمنت علمي او مسلکي غړي

اډيټ کوونکي: د پښتو ژبې د اډيټ د څانګې علمي او مسلکي غړي

ټولګی: نهم

د متن ژبه: پښتو

انکشاف ورکوونکی: د تعليمي نصاب د پراختيا او درسي کتابونو د تاليف لوی رياست

خپروونکی: د پوهنې وزارت د اړيکو او عامه پوهاوي رياست

د چاپ کال: ۱۳۹۸ هجري شمسي

برېښناليک پته: curriculum@moe.gov.af

---

# د پوهنې د وزیر پیغام
## اقرأ باسم ربک

د لوی او بښونکي خدایﷻ شکر په ځای کوو، چې موږ ته یې ژوند رابښلی، او د لوست او لیک له نعمت څخه یې برخمن کړي یو، او د الله تعالی پر وروستي پیغمبر محمد مصطفیﷺ چې د الهي لومړنی پیغام ورته (لوستل) و، درود وایو.

څرنګه چې ټولو ته ښکاره ده ۱۳۹۷ هجري لمریز کال د پوهنې د کال په نامه ونومول شو، له دې امله به د ګران هېواد ښوونیز نظام، د ژورو بدلونونو شاهد وي. ښوونکی، زده‌کوونکی، کتاب، ښوونځی، اداره او د والدینو شوراګانې د هېواد د پوهنیز نظام شپږګوني بنسټیز عناصر بلل کیږي، چې د هېواد د ښوونې او روزنې په پراختیا او پرمختیاکې مهم رول لري. په داسې مهم وخت کې د افغانستان د پوهنې وزارت د مشرتابه مقام، د هېواد په ښوونیز نظام کې د ودې او پراختیا په لور بنسټیزو بدلونونو ته ژمن دی.

له همدې امله د ښوونیز نصاب اصلاح او پراختیا، د پوهنې وزارت له مهمو لومړیتوبونو څخه دي. همدارنګه په ښوونځیو، مدرسو او ټولو دولتي او خصوصي ښوونیزو تآسیساتو کې، د درسي کتابونو محتوا، کیفیت او توزیع ته پاملرنه د پوهنې وزارت د چارو په سر کې ځای لري. موږ په دې باور یو، چې د باکیفیته درسي کتابونو له شتون پرته، د ښوونې او روزنې اساسي اهدافو ته رسېدلی نشو.

پورتنیو موخو ته د رسېدو او د اغېزناک ښوونیز نظام د رامنځته کولو لپاره، د راتلونکي نسل د روزونکو په توګه، د هېواد له ټولو زړه سواندو ښوونکو، استادانو او مسلکي مدیرانو څخه په درناوي هیله کوم، چې د هېواد بچیانو ته دې د درسي کتابونو په تدریس، او د محتوا په لېږدولو کې، هیڅ ډول هڅه او هاند ونه سپموي، او د یوه فعال او په دیني، ملي او انتقادي تفکر سمبال نسل په روزنه کې، زیار او کوښښ وکړي. هره ورځ د ژمنې په نوي کولو او د مسؤولیت په درک سره، په دې نیت لوست پیل کړي، چې د نن ورځې ګران زده‌کوونکي به سبا د یوه پرمختللي افغانستان معماران، او د ټولنې متمدن او ګټور اوسېدونکي وي.

همدا راز له خوږو زده کوونکو څخه، چې د هېواد ارزښتناکه پانګه ده، غوښتنه لرم، څو له هر فرصت څخه ګټه پورته کړي، او د زده کړې په پروسه کې د ځیرکو او فعالو ګډونوالو په توګه، او ښوونکو ته په درناوي سره، له تدریس څخه ښه او اغېزناکه استفاده وکړي.

په پای کې د ښوونې او روزنې له ټولو پوهانو او د ښوونیز نصاب له مسلکي همکارانو څخه، چې د دې کتاب په لیکلو او چمتو کولو کې یې نه ستړې کېدونکې هلې ځلې کړې دي، مننه کوم، او د لوی خدایﷻ له دربار څخه دوی ته په دې سپیڅلې او انسان جوړوونکې هڅې کې بریا غواړم.

د معیاري او پرمختللي ښوونیز نظام ا و د داسې ودان افغانستان په هیله چې وګړي یې خپلواک، پوه او سوکاله وي.

**د پوهنې وزیر**

**دکتور محمد میرویس بلخي**

## لیک لړ

**لومړی څپرکی: واک ته د احمدشاه بابا تر رسېدو وړاندې د افغانستان اقتصادي، ټولنیز او سیاسي حالت (۱-۸)**

- د احمد شاه بابا له واکمن کېدو وړاندې د افغانستان سیاسي حالت .
- د احمد شاه بابا له واکمن کېدو وړاندې د افغانستان تولنیز حالت ځنګه و؟
- د احمد شاه بابا له واکمن کېدو وړاندې د افغانستان اقتصادي حالت ځنګه و؟

**دویم څپرکی: له ۱۷۴۷ ز څخه تر ۱۸۷۹ ز کال پورې د افغانستان پېښې (۹- ۴۴)**

- احمدشاه بابا ځنګه یوځل بیا افغانستان را ژوندی کړ.
- د احمد شاه بابا اداري اصلاحات او نظامي فعالیتونه.
- د احمدشاه بابا د خصلتونو په اړخه پوهیزئ؟
- آیا پوهېږئ تیمور شاه شل کاله واکمني وکړه؟
- آیا د شاه زمان د واکمنۍ تګلارې پیژنئ؟
- آیا پوهېږئ شاه محمود لومړی ځل خرنګه واک ته ورسېد؟
- د شاه شجاع د لومړي ځل واکمنۍ څرنګوالی
- د شاه محمود د دویمې دورې د واکمنۍ څرنګوالی
- آیا د امیر دوست محمد خان د لومړي ځل واکمنۍ سره آشنایي لرئ؟
- آیا پر افغانستان د انګریزانو د لومړي یرغل په اړه معلومات لرئ؟
- آیا د شاه شجاع د دویم ځل واکمنۍ په اړه معلومات لرئ
- آیا د امیر دوست محمد خان د دویم ځل واکمنۍ په اړه پوهېږئ؟
- آیا د امیر شیرعلي خان د لومړي ځل سلطنت سره آشنایی لرئ؟
- آیا د امیر محمد افضل خان له شخصیت سره پېژند ګلوي لرئ؟
- آیا د امیر محمداعظم خان د شخصیت په اړه معلومات لرئ؟
- آیا د امیر شیرعلي خان د دویم ځل سلطنت سره پیژند ګلوي لرئ؟
- آیا پر افغانستان د انګریزانو د دو یم تیرې په اړه معلومات لرئ؟

## دريم څپرکی: له ۱۸۸۰ ز- ۱۹۷۳ ز کال پورې د افغانستان پېښې (۴۵-۶۲)

- د مرکزي واکمنۍ په ټينګښت کې د اميرعبدالرحمن ونډه څه وه؟
- د امير حبيب الله خان د پاچاهۍ په اړه څه پوهېږئ؟
- د افغانستان خلکو څرنګه له انګريزانو څخه خپله خپلواکي ترلاسه کړه؟
- د امان الله خان د مسافرتونو لاس ته راوړنې څه وې؟
- حبيب الله کلکانی څرنګه واک ته ورسيد؟
- آيا پوهېږئ چې محمد نادر شاه څرنګه واک ته ورسيد؟
- آيا پوهېږئ چې محمد ظاهرشاه څلوېښت کاله پاچاهي وکړه؟

## څلورم څپرکی: دګاونډيو هېوادونو معاصر تاريخ (۶۲-۷۵)

- د چين يا د نړۍ د ترټولو زيات نفوس لرونکي هېواد په اړه څه معلومات لرئ؟
- آيا د پاکستان له تاريخ او هېواد سره آشنايي لرئ؟
- آيا د ايران د اسلامي جمهوري هېواد له تاريخ او موقعيت سره آشنا ياست؟
- آيا د ازبکستان هېواد په اړه معلومات لرئ؟
- آيا د تاجکستان له خلکو او تاريخ سره آشنايي لرئ؟
- آيا د ترکمنستان له خلکو او تاريخ سره آشنايي لرئ؟

## د لومړي څپرکي موخې

• واک ته د احمدشاه بابا تر رسېدو وړاندې د افغانستان سیاسي، اقتصادي او ټولنیزې اوضاع سره د زده‌کوونکو پېژندګلوي.

• له احمدشاه بابا وړاندې، له فکري غورځنګونو سره د زده‌کوونکو پېژندګلوي.

• د احمدشاه بابا له واکمنۍ څخه وړاندې د هېواد له ملي او مبارزو څېرو سره د زده‌کوونکو پېژندګلوي.

# د احمدشا بابا تر واکمن کېدو وړاندې د افغانستان سیاسي حالت څرنګه و؟




په دې لوست کې د احمدشاه بابا تر واکمن کېدو وړاندې **لاملونه** تر څېړنې لاندې نیسو.

زده‌کوونکي په دې پوهېږي چې په شپاړلسمه زیږدیزه پېړۍ کې زموږ خاوره د ناوړه سیاسي پېښو قرباني شوه. د **سلطان حسین بایقرا** له مړینې سره د ګډوډیو لاره هواره شوه او د **شیبانیانو** په لاس د **هرات** تیموري دولت له منځه لاړ. په **فارس** کې د **صفوي شاه اسماعیل** په لاس د **صفویانو** د واکمنۍ بنسټ کېښودل شو. په **هند** کې له **ګورګاني** شهزادګانو څخه یو تن **محمد بابر** د **بابري** دولت بنسټ کېښود. په دې توګه په شمال، لوېدیځ او سوېل ختیځ کې **بابري، صفوي** او **شیباني** دولتونه جوړ شول. دا ټول واکمنان زموږ د هېواد د پرمختګ د مخنیوي لاملونه ګڼل کېدل. د جغرافیایي سېمو وېش، زموږ خاوره کابو دوه نیمې پېړۍ له تدریجي ودې لېرې وساتله. په دې موده کې زموږ هېواد د نورو هېوادونو په منځ کې د جګړو ډګر و او د هغو هېوادونو فرهنګي ارزښتونو په فرهنګي حوزه کې په موږ اغېز وکړ.

د لښکر ایستلو د لګښتونو له امله کورنۍ ستونزې ورځ په ورځ زیاتې شوې خلک اړ شول چې د سفر آسانتیاوې برابرې کړي. دې لاملونو د یرغلګرو په وړاندې مساعد شرایط رامنځ ته کړل. مخالفتونه یې له کرکې څخه تر انزجاره ورسېدل او په پایله کې د خپلواکۍ غوښتنې احساساتو شدت پیدا کړ.


بایزید انصاري


خوشحال خان خټک


میرویس نیکه

سیاسي مبارزې له پټو کړنو څخه پیل او د ښکېلاک پر ضد یې لمن اوږده شوه. د خلکو پاڅونونه د لومړي ځل لپاره په **هرات**، **کندهار**، **اندخوی** او **بلوچستان** کې پیل شول. سره له دې چې پاڅونونه په یو ځای کې غلي کېدل او په بل ځای کې راپورته کېدل، خو په عمومي ډول یې غلي کېدل ناشوني وو.

په ختیځو ولایاتو کې د خپلواکۍ غوښتنې غورځنگونه پیل شول چې د ختیځو کرښو او یا سرحدي سیمو میشتو زیاترو قومونو په کې برخه اخیستې وه. دا رنگه سیاسي غورځنگونو که څه هم خپلواکي ترلاسه نشوای کړای خو د هغو سیمو خلکو ته یې الهام ورکړ، چې د **روښانیانو** د نهضت تر نامه لاندې خوځښت د دې خاورې په تاریخ کې را پیدا او ځانگړې ونډه یې ترسره کړه.

د روښانیانو د نهضت مشري د **بایزید انصاري** د **شیخ عبدالله انصاري** د زوی په غاړه وه. هغه د مغلي حکومت د استبداد له ضد مبارزې ته خلک راوبلل. د روښانیانو خوځښت په سیاسي او مذهبي ځانگړتیاوو ولاړ و. یو تن د هغه نهضت مخالفینو څخه **اخند درویزه** و چې د **پیر روښان** پر ضد یې تبلیغونه په لاره واچول پیر روښان تر هغې مودې چې د مرگ تنده نه وه لیدلې خپلو مبارزو ته یې دوام ورکړ.

د **خوشحال خان خټک** پاڅون بل سیاسي حرکت و چې زموږ د خلکو په راویښولو کې اغېزناک شو او زموږ په معاصر تاریخ کې د **خټکو** غورځنگ په نامه شهرت درلوده چې زموږ د هېواد په تاریخ کې ځانگړی ځای لري. په خپله خوشحال خان یو فرهنگي او پوځي سړی و. د خپل ژوند څلور کاله یې په بند کې تېر کړل. له خلاصېدو څخه وروسته یې بیا د خپل قوم مشري په لاس کې ونیوله. د نوموړي مبارزې تر مرگه پورې چې کابو اتیا کلن و دوام وموند.

که څه هم د خپلواکۍ غوښتونکو مبارزې د هېواد په ختیځو سیمو کې کله ناکله په وقفه یي ډول له منځه تللې، خو په **اتلسمه پېړۍ** کې یوځل بیا **میرویس خان نیکه** د یرغلگرو د له منځه وړلو په موخه پاڅون وکړ چې زموږ د هېواد په تاریخ کې د **کندهار** د پاڅون په نوم یاد شوی دی.

میرویس خان نیکه په (**۱۷۰۹**) زیږدیز کال کې د **گرگین** د ظلمونو او د صفویانو د حاکمیت په وړاندې د کندهار ښار د خلکو پاڅون وهڅاوه او د دې پاڅون په پایله کې یې، د **هوتکیانو** خپلواک دولت جوړ کړ چې همدې دولت وکړای شول د **احمدشاه بابا** سیاسي اقتدار ته لار هواره کړي.



**په ټولگي کې فعالیت**

زده‌کوونکي دې په درې ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې په دې اړه چې د پیر روښان غورځنگ څرنگه غورځنگ و او په کومو سیمو کې رامنځ ته شو، دویمه ډله دې په دې اړه چې د خوشحال خان خټک پاڅون د کومو سیمو په سیاسي راویښتوب کې اغېزناک و او درېمه ډله دې د هوتکیانو د خوځښت په اړه په خپلو منځو کې بحث وکړي او د بحثونو پایلې دې د هرې ډلې استازی په ټولگي کې ولولي.



**پوښتنې**

۱- ولې سېمه ییزې واکمنی منځ ته راغلې؟
۲- کومو دولتونو خپل فرهنگي ارزښتونه زموږ د هېواد پر خلکو وتپل؟
۳- کوم لاملونه زموږ د خلکو د خپلواکۍ غوښتنې د ذهنیت په روزنه کې اغېزناک وو؟



**له ټولگي نه د باندې فعالیت**

زده‌کوونکي دې د لویانو نه د نادر افشار په اړه معلومات ترلاسه کړي او هغه دې د ابدالي احمدشاه له واک سره له تړاو ورکولو څخه وروسته په ټولگي کې وړاندې کړي.

# د احمدشاه بابا د واکمن کېدو پر مهال د هېواد ټولنيز وضعيت څنګه و؟



په تېر لوست کې له احمدشاه بابا **څخه** ورانديې د سياسي شرايطو جزئياتو ته اشاره وشوه، په اوسني بحث کې د احمدشاه بابا د واک تر رسېدو وړاندې ټولنيز حالت تر بحث لاندې نيسو.

د **شيباني**، **صفوي** او **بابري** يرغلګرو ځواکونو د ولکې په پايله کې د هېواد مرکزي دولت سوداګري او کرنه له لاسه ورکړه. د **هرات** د هنري مکتب نور په دې باندې نه توانېده چې د ادب او صنعت کار مخ ته بوځي. د لښکر ايستلو لګښتونه د دې خاورې پر خلکو باندې تپل کېدل. حاکمانو او افسرانو په پوځي کلاوو کې سوکاله ژوند درلوده. پوځي لښکر د ښار په د ننه عسکري بارکو کې ځای په ځای وو. شنه او ښېرازه ځرڅايونه وسله والو ځواکونو ته ځانګړې شوي وو او پوځيانو د خپلو ستومانيو لرې کولو لپاره د تفريح له ځايونو او بڼونو څخه ګټه پورته کوله.

پورتنيو مسايلو ته په پام سره زموږ هېواد مرکزي حکومت نه درلود. د اوبو لګولو سيسټمونه او بندونه چې پخوا موجودوو، د پرله پسې جګړو په پايله کې وران او له منځه ولاړل. په دې حالاتو کې جدي خطر زموږ خاوره ګواښله.

په هېواد کې د زياترو خلکو بوختيا **کرنه او مالداري** وه. د شنو دښتو شتون د څارويو روزنه او زياتوالی هڅاوه. د مالدارۍ کسب په هغه مهال کې د ټولنيزو کسبونو يوه مهمه برخه جوړوله. د څارويو په روزنه کې ځانګړې پاملرنه اس، اوښ او غوا ته کېده. دا څاروي د ډېر شهرت لرونکي وو.

ځرمن جوړول، صابون جوړول، غالي اوبدل او ټغر اوبدل هم د سوداګرۍ بله برخه او د ټولنيزو بوختيا وو ښکاروندی وه. په ټولنيز حالت کې اخيستل او پلورل د جنس په جنس په ډول وه، ولې پيسې او سکې هم د ګټې وړ وې.



پورتنی انځور د احمد شاه بابا د واک ته تر رسېدو وړاندې ټولنيز حالت بيانوي

### په ټولګي کې فعاليت

زده‌کوونکي دې په دوه ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د احمدشاه بابا واک ته له رسېدو څخه وړاندې د سېمه ييزو حکومتونو په اړه او دويمه ډله دې د خلکو د بوختيا وو په اړه په خپلو منځو کې بحث وکړي او د بحث پايلې دې د هرې ډلې استازو نورو ته واوروي.

### پوښتنې

۱- ټولنيزو بدلونونو ولې په سستی سره حرکت کاوه؟

۲- د يرغل څخه پايله کې زموږ په خاوره کوم ډول ټولنيز زيانونه منځ ته راغلل؟ دوه ډوله يې وليکئ.

### له ټولګي نه د باندې فعاليت

زده‌کوونکي دې له لويانو څخه د سيل ځايونو په اړه معلومات لاس ته راوړي او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

# د احمدشاه بابا تر واکمن کېدو وړاندې اقتصادي حالت څنګه و؟



تېر لوست ټولنيز حالت ته ځانګړی شوی و، په دې لوست کې اقتصادي حالت څېړو.

د هېواد اقتصادي حالت په ۱۶- ۱۷ پېړیو کې کابو ښه و. **کرنې**، **مالداری** او **لاسي صنایعو** د اقتصاد درې مهمې ځانګې جوړولې. د دې ځمکې اقلیم او خاوره د ځینو نباتاتو د کښت لپاره مساعده وه. ولې یرغلونو د کرنې سیستمونه ټول له مینځه یووړل. خلك له اسلام څخه په پېړیو وړاندې په کرنه بوخت وو. د دې ځای د خلکو بله بوختیا مالداری جوړوله.

د پردیو له یرغلونو څخه وړاندې د ښارویو په ډېرښت او روزنه کې کوښښونه کېدل. د لاسي او حرفه یې صنایعو په برخه کې او د پردیو له یرغلونو څخه وړاندې نظامونو، خلك هڅول چې د سرو زرو، سپینو زرو، اوسپنې، مسو او سربو په راویستلو لاس پورې کړي. زرګرو، مسګرو او د صنایعو ټولو مالکانو، د خلکو د اړتیاوو په تولید کې ګام پورته کاوه.

په سوداګری کې نښلوونکو واټونو او لارو فوق العاده ارزښت درلوده، د پردیو له یرغلونو څخه پخوا په ۱۶- ۱۷ پېړۍ کې صادرات او واردات د **هند**، **چین**، **ایران** او **ماوراءالنهر** له هېوادونو سره په زیاته کچه کېدل. هغه مهال کې د **کندهار** او **هرات** ښارونه سوداګریز مرکزونه ګڼل کېدل. د کندهار د ښار سوداګریز ارزښت په دې کې و چې له هغه ښار څخه سوداګریز کاروانو نه تېریدل. یو مهال د کندهار ښار د **هند** د **دروازې** په نامه یادېده، له همدې امله زیاتې جګړې د وخت د ځواکمنو هېوادونو په منځ کې د کندهار د پوره نیولو په موخه رامنځ ته کېدې. د پردیو د یرغلونو او د هېواد له تجزیې څخه وروسته،

اقتصادي مرکزونه له منځه لاړل. په ښارونو کې اقتصادي فعالیتونه او د خلکو کارونه په ټپه ودرېدل او په پایله کې اقتصاد ته ډېر تاوان ورسېده چې دې حالت تر **اتلسمې پېړۍ** او د **ابدالیانو** د دولت تر رامنځته کېدو پورې دوام وموند.



پورتنی انځور د احمد شاه بابا د واک ته د رسېدو نه وړاندې اقتصادي حالت بیانوي



**په ټولګي کې فعالیت**

زده‌کوونکي دې په دوه ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د احمدشاه بابا د واک ته رسېدو څخه وړاندې د هېواد په اقتصادي وضعه او دویمه ډله دې د اقتصادي فعالیتونو په مهمو ځانګو باندې بحث وکړي او د بحث پایلې دې د هرې ډلې استازی نورو ته وړاندې کړي.



**پوښتنې**

۱- ولي سکې رامنځ ته شو؟

۲- د احمدشاه بابا واک ته له رسېدو څخه وړاندې کومو ښارونو له اقتصادي امله ځانګړې ارزښتونه درلودل؟



**له ټولګي نه د باندې فعالیت**

زده‌کوونکي دې له لویانو څخه د سرو زرو، سپینو زرو، اوسپنې او داسې نورو شیانو د را ایستلو دلیل وپوښتي او خپل معلومات دې په ټولګي کې وړاندې کړي.

# د دويم څپرکي موخې

- د احمدشاه بابا له شخصيت سره د زده‌کوونکو پېژندګلوي
- د احمدشاه بابا د ادارې د څرنګوالي، اصلاحاتو او نظامي سفرونو د موخو سره د زده‌کوونکو پېژندګلوي
- د احمدشاه بابا د ځای ناستو د ادارې له څرنګوالي سره د زده‌کوونکو پېژندګلوي
- د افغانستان په وړاندې د انګريزانو له ښکيلاکي سياست سره د زده‌کوونکو پېژندګلوي
- پر افغانستان باندې د انګريزانو د يرغلونو له لاملونو سره د زده‌کوونکو پېژندګلوي.

# احمد شاه بابا څرنګه یوځل بیا افغانستان را ژوندی کړ؟




تېر لوست د احمدشاه بابا واک ته تر رسېدو وړاندې اقتصادي حالت وڅېړه، په دې لوست کې به د احمدشاه بابا په واسطه د هېواد د بیا را ژوندي کولو څرنګوالی مطالعه کړو.

**احمدخان** د **زمان خان زوی** او د **دولت خان سدوزايي** لمسی، په **۱۷۲۲** زېږدیز کال چې د **۱۱۰۱** هجري لمریز سره برابر دی، په **هرات** کې زېږېدلی دی. په پنځه ویشت کلنۍ کې د **شېر سرخ** زیارت په جرګه کې واک ته ورسېد. د غنمو وږی د **کابلي صابر شاه** له خوا چې یو دینداره شخص و، د نوموړي په پټکي کې د شاهي سمبول په عنوان وټومبل شو. په دې توګه **احمدشاه بابا** واک ته ورسېد. نوموړي له ټاکل کېدوڅخه وروسته لاندې ټکي د موخو په توګه په پام کې درلودل:

۱. د مرکزي قدرت بیا جوړول او یووالی

۲. د افغانستان د طبیعي پولو امن چې له **امو سیند** څخه يې د **سند** او **هند** تر سینده پورې اوږدوالی درلود،

احمدشاه بابا په ځینو کارونو لاس پورې کړ. هېواد ته يې له سیاسي او اقتصادي اړخه یووالی ور وباښه. د قبایلو ترمنځ اختلافونه يې له منځه یوړل. خلک يې وهڅول چې د هېواد په ګټو او تاوانونو کې سره شریک شي.

چارواکو ته د مشورې ورکولو لپاره يې د مشرانو د تلپاتې جرګې بنسټ کېښود. د دې پروګرامونو د پلي کولو او موخو ته د رسېدلو په موخه يې، د مذهبي ډلو ملاتړ په پام کې ونیوه. د خپل ټولنیز دریځ د ټینګښت لپاره يې د خیښۍ د اړیکو په ټینګښت لاس پورې کړ. احمدشاه بابا د ښه استعداد په درلودو سره په ټولو برخو کې زیار وایست او د دولت د چارو د پرمخ بیولو په لاره کې يې ډېرې ستونزې وګاللې.

**د درانیانو امپراطوري (۱۷۴۷ز-۱۸۳۸ زیږدیز)**

### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. لومړۍ ډله دې د کابلي **صابر شاه** د شخصیت په اړه او دویمه ډله دې د سیاسي او اقتصادي مسایلو په تنظیم کې د احمدشاه بابا د ونډې په اړه په خپلو منځو کې سره بحث وکړي.

### پوښتنې

۱- احمدشاه بابا په لنډه توګه راوپیژنئ؟

۲- د احمدشا بابا موخې کومې وې؟

۳- د احمدشاه بابا د شخصیت بېلابېل اړخونه تشریح کړئ؟

### له ټولګي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د احمدشاه بابا د موخو په اړه له لویانو څخه معلومات لاس ته راوړي او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

# د احمدشاه بابا اداري اصلاحات او پوځي فعالیتونه



د کندهار سرپټی بازار

په تېر لوست کې د احمدشاه بابا لخوا د هېواد بیا جوړول ولوستل شول، په دې بحث کې د احمدشاه بابا په لاس ترسره شویو اداري او پوځي اصلاحاتو باندې رڼا اچوو.

## اداري اصلاحات

**احمدشاه بابا** په اداري، پوځي او مالي جوړښت کې اصلاحات راوستل، وزیران یې وټاکل، د مشرانو جرګه یې جوړه کړه، د حکومت ډول یې د ټولو اسلامي هېوادونو په څېر مطلقه سلطنت و، د مشرانو په جرګه کې نهه پوهو کسانو غړیتوب درلود چې د تصمیم نیولو لوړ ځای و.

د نظام اداري جوړښت یې له درې ګونو قواوو (**اجرائیه**، **مقننه او قضائیه**) څخه جوړ کړ. قضایي قوې پوره خپلواکي درلوده. د هېواد عواید یې د مالیاتو د ټولولو، غنیمت مالونو، جنګي غراماتو او د پاچاهانو له سوغاتونو تر لاسه کول.

د احمدشاه بابا خزانه له سرو زرو، ګاڼو او قیمتي ډبرو نه ډکه وه. د نوموړي د مهمو کارونو څخه د **کندهار** ښار نوې ودانۍ او د **خلم** ښار جوړول دي. **معمارۍ**، **حکاکۍ** او د **انځورګرۍ** حرفو په دې وخت کې د پام وړ پرمختګ کړی و.

## پوځي فعاليتونه

احمدشاه بابا په پوځي برخه کې ځانګړی استعداد درلود. د افغانانو د هېواد پالنې احساسات یې هڅول. خلکو ته یې ځواکمنتیا او خو ځښت ورباښه. په دې توګه بریالی شو چې سیاسي یووالی ټینګ کړي او هېواد خپلو طبیعي پولو ته ورسوي. د احمدشاه بابا په پوځ کې دوه ډوله سرتېري وو، یو ډول یې **منظم** او بل یې **نامنظم** ځواک و چې د **قومي ځواک** په نامه یې شهرت درلوده. د احمدشاه بابا په واکمنۍ کې د عسکرو شمیر په منځني ډول **سل زره** تنو ته رسېده. قومي ځواکونه د خدمت په مـهال له مالیې ورکولو نه معاف کېدل. د هېواد ټول عایدات **یو دیرش میلیونه** روپیو ته رسېدل چې له نیول شویو سیمو څخه لاس ته راتلل.

احمدشاه بابا په درې ګونو لورو کې وسله وال ځواکونه وګمارل. تر ټولو مهمه جګړه یې د **هند** په لوري د **پاني پت** په نامه شهرت لري چې په پایله کې احمدشاه بابا د اتل په توګه راڅرګند شو. افغاني ځواکونو ډېر زیات غنایم لاسته راوړل. د نظم منځ ته راوړلو په موخه، احمدشاه بابا دوه ځله د لویدیځ په لور لښکر وایستل چې په پایله کې نوموړي ته ډېر بریالیتوبونه ور په برخه شول. احمدشاه بابا د پولو د ټاکلو په موخه د شمال په لوري هم لښکر وایست، بریالیتوبونه یې په نصیب شول او د امو سیند یې د دواړو حکومتو ترمنځ د طبیعي پولې په توګه وټاکه.

### په ټولګي کې فعالیت

زده کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. لومړۍ ډله دې په دې اړه چې احمدشاه بابا په اداري او پوځي اړخو کې ولې ګام پورته کړ او دویمه ډله دې د نهه کسیزې شورا د دندې په اړه په خپلو منځو کې خبرې وکړي، د خبرو اترو پایله دې د هرې ډلې استازي نورو ته واوروي.

### پوښتنې

۱– د احمدشاه بابا د حکومت ډول په اړه څه پوهېږئ؟
۲- د احمدشاه بابا د سلطنتي نظام ارزښت په څه کې و؟
۳- د احمدشاه بابا په وسله وال پوځ کې څو ډوله سرتېري وو؟
٤- د احمدشاه بابا وسله وال پوځونه په کومو لورو وګمارل شول؟
۵- د احمدشاه بابا د واکمنۍ پر مهال د هېواد عایدات له کوم اړخه تامین کېدل؟

### له ټولګي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د احمدشاه بابا د کارنامو په اړه معلومات لاس ته راوړي او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

# د احمدشاه بابا د نیکو خصلتونو په اړه څه پوهیږئ؟



د احمدشاه بابا مقبره په کندهار کې

په تیر لوست کې د احمدشاه بابا په اداري او پوځي اصلاحاتو رڼا واچول شوه، په دې لوست کې د هغه د د نیکو خصلتونو او د مړینې وخت ته کتنه کوو.

**احمدشاه بابا** د معاصر افغانستان د بنسټ ایښودونکي په توګه، د دې خاورې په جوړښت او د قومونو ترمنځ د یووالي په رامنځ ته کولو کې بریالی شو. له همدې امله یې د خلکو په منځ کې ځانګړی ځای درلوده. نوموړی هغه پاچا و چې تاج یې پر سر نه ایښوده، تشریفات یې نه خوښېدل، پټکی یې تاړه او د ځمکې پر مخ کښیناسته. هغه له خلکو سره نېغه اړیکه درلوده. د سوله ییز شخصیت په توګه یې د خلکو په شخړو کې پریکړې کولې. په ورین تندي یې له خلکو سره خبرې کولې. زړور او هېواد پالونکی سړی و. په نړیوالو چارو کې یې له عدالت څخه کار اخیست. کړکېچونه یې په سوله ییز ډول حلول. احمدشاه بابا په سیاست کې د نرمښت پلوی و او تل به یې د دوستۍ له لارې چلند کاوه. سره له دې چې د خاورې د پراخوالي هوډ یې درلود، له وینو تویولو نه یې ډډه کوله. د ده د ښو او نیکو اخلاقو له امله ورته د **بابا** لقب ورکړل شوی دی.

احمدشاه بابا له شپږ ویشت کاله واکمنۍ څخه وروسته د هغې ناروغۍ له امله چې ده ته وریښنه شوې وه د یو پنځوس کلو په عمر ۱۱۵۱ لمریز کال چې د (۱۷۷۳) زیږدیز کال سره سمون لري له نړۍ څخه سترګې پټې کړې او د **کندهار** ښار د **مبارکې خرقې** په انګړ کې خاورو ته وسپارل شو.



په کندهار کې د احمد شاه بابا جومات



## په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي.
لومړۍ ډله دې له نیول شویو هېوادونو سره د احمدشاه بابا په ښه چلند رڼا واچوي.
دویمه ډله دې د احمدشاه بابا د تګلارې او د نومورې د مړینې کال په اړه بحث وکړي.



## پوښتنې

۱- احمدشاه بابا له څومره مودې وروسته او د څو کلو په عمر له نړۍ څخه سترګې پټې کړې؟
۲- د احمدشاه بابا ښېګڼې چې د هېواد واکمنی په اړه وې تشریح کړئ.
۳- د احمدشاه بابا ځانګړې صفتونه کوم وو؟ دوه ډوله یې ولیکئ.



## له ټولګي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د احمدشاه بابا د ښېګڼو په اړه چې هغه پرې باور درلوده، له لویانو څخه معلومات لاس راوړي او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

# آیا پوهېږئ چې تیمورشاه شل کاله واکمني وکړه؟



تېر لوست د احمدشاه بابا د ښېګڼو او د مړینې روښانولو ته ځانګړی شوی و، په دې لوست کې د تیمورشاه شل کلنه واکمني څېړل کېږي.

**تیمورشاه** چې په ۱۱۲۰ هجري لمریز (۱۷۴۲ زېږدیز) کال کې زېږېدلی و د پلار د پاچاهۍ پر مهال د **هرات** ولایت والي و. هغه تعلیم لرونکی او د دري ژبې شاعر هم و. د هغه وخت له دود سره سم تیمورشاه د پلار تر مړینې وروسته په **کندهار** کې د پاچاهۍ مقام ته نوماند شو. د **شهزاده سلیمان** نه د وزیر **شاه ولي خان** ملاتړ د دې لامل شو چې شهزاده سلیمان پاچاهۍ ته ورسیږي. پدې وخت کې تیمورشاه کندهار ته ورسېد او د ناراضه مخورو له خوا یې د لمسولو په پایله کې وزیر شاه ولي خان وواژه او شهزاده سلیمان له پاچاهۍ **څخه** لاس واخیست.

د تیمورشاه د واکمنۍ پیر په بریاوو او هوساینو کې تېر شو، په دې وخت کې په ځینو سیمو کې پاڅونونه وشول، نوموړی بریالی شو چې خپل مخالفین له منځه یوسي او له هغو پولو نه دفاع وکړي چې ده ته په میراث پاتې شوي وې. یواځې د **بخارا** د واکمن **شاه مرادبېک** سره چې د **امو سیند** په سوبېل یې د یرغل قصد درلوده په جنګ اړ شو، خو د مخورو مشرانو په منځګړیتوب سره سوله وشوه او آمو سیند د دواړو هېوادو ترمنځ پوله وټاکل شوه. د دې مرحلې ځانګړتیا د پولو ساتنه وه. تیمورشاه ته چې کوم دولت په میراث پاتې شوی و بې له کوم بدلون څخه یې وساته. ټولو نښتو دفاعي ارزښت درلود. نوموړی له ټولو ګاونډیانو سره د ښه ژوند کولو پلوی و.

د تیمورشاه تېر وتنه دا وه چې محلي سیمې یې د خپلو زامنو تر منځ ووېشلې.

تیمورشاه له خپلې شل کلنې واکمنۍ څخه وروسته په ۱۷۹۳ زېږدیز کال په کابل کې له دې نړۍ څخه

سترګې پټې کړې او د **کابل** په مرکز کې د کابل سیند سویلي خوا ته ځېرمه خاورو ته وسپارل شو.



په کابل کې د تیمورشاه مقبره

### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي. لومړۍ ډله دې فرهنګي پرمختیا وڅېړي، دویمه ډله دې د **تېمورشاه** د قلمرو د وېش لاملونه د ده د زامنو ترمنځ مطالعه کړي او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱- په کندهار کې د چا ملاتړ د **شهزاده سلیمان** د واک ته رسېدو لامل وګرځېد؟
۲- د احمدشاه بابا په پاچاهۍ کې د ولیعهد په اړه څه دود او دستور و؟
۳- د تېمورشاه د واکمنۍ سیاسي ځانګړتیا څه وه؟
٤- د تېمورشاه کومې تېروتنې د هغه د امپراتورۍ د ماتې د چټکوالي لامل وګرځېد؟

### له ټولګي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د تېمورشاه د شخصیت او کارنامو په اړه له خپلو مشرانو څخه وپوښتي او خپل معلومات دې په ټولګي کې وړاندې کړي.

# آیا د شاه زمان د واکمنۍ تګلارې پېژنئ؟



تېر لوست د تېمورشاه واکمنۍ ته ځانګړی شوی و، په دې لوست کې هغه کېږي چې د شاه زمان د واکمنۍ کورنۍ او بهرنۍ کړنلارې وڅېړل شي.

**شاه زمان** د پلار له مړينې سره سم ټول وروڼه د کابل ښار ته راوبلل. د **سردار پاينده محمد خان** په ملاتړ يې چې د **بارکزيو** د قوم مشر و، د تاج او تخت غوښتونکي بنديان او په خپله يې په ۱۷۹۳ زېږديز کال کې چې له ۱۱۷۱ لمريز کال سره سمون لري د واکمنۍ اعلان وکړ. د نوموړي د واکمنۍ پر مهال د نړۍ لويه سياسي پېښه (**د فرانسې لوی انقلاب**) رامنځ ته شو چې لاس ته راوړنه يې يوازې د فرانسې هېواد ته محدوده نه شوه بلکې ټوله نړۍ يې ونيوله.

کورنيو او بهرنيو تاريخ ليکونکيو، شاه زمان يو هوښيار، فعال، زړور او حوصله لرونکی سړی بولي. د يوې جګړې په پای سره به يې بلې ته ورداننګل. خلکو د **تېمورشاه** د نورو زامنو په پرتله شاه زمان ته ډېر درناوی کاوه. نوموړي کابو د نيمايي پېړۍ امنيت په پای کې سياسي واک لاس ته راوړ. د امنيت د ټينګولو په موخه يې هوډ درلود چې مرکزيت پياوړی کړي. د دې موخو په پلي کولو کې د هېواد دننه او بهر له ستونزو سره مخامخ شو.

کورنيو سيالي کوونکو او د واک غوښتونکو له يوې خوا او قبيلوي مشرانو او مخورو له بلې خوا په سيمه کې په ښکاره او پټه لاسوهنې پيل کړې او د بهرنيو دښمنانو استخباراتي شبکو پرو پاګند په ټول زور او ځواک سره

د شاه زمان پر ضد پیل شوې. **رنجیت سنګ** او پردې پلوو شاه زمان ته په کورنیو چارو کې د پام وړ ستونزې پیدا کړې. په لوېدیځ کې **قاجار فتح علی شاه** هم د شاه زمان د وروڼو ترمنځ له مخالفتونو او بېلتون نه ګټه پورته کړه او په مالي او پوځي مرستو یې **شهزاده محمود** په **هرات** کې وهڅاوه.

د مخورو او بانفوذه خلکو خپه کول، په سیمه کې ښکاره او پټو لاسوهنو او کورنیو خپل منځي مخالفتونو، د **وزیر فتح خان** په نږدې ملتیا سره د **شاه محمود** واک ته د رسېدو لپاره حالات چمتو کړل.

له لږ څه مقاومت څخه وروسته شاه زمان **کابل د پېښور** په تکل پرېښود، خو د لارې په اوږدو کې له نورو ملګرو سره د **ملا عاشق الله شینواري** له خوا ونیول شو او ړوند کړی شو، وروسته تر څارنې لاندې د کابل ښار ته راوستل شو په دې توګه د شاه زمان واکمني پای ته ورسېده او **شهزاده محمود** واک ته ورسېد.



### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د شاه زمان د واکمنۍ د څرنګوالي او دویمه ډله دې د کورنیو بغاوتو په اړه خبرې اترې وکړي.



### پوښتنې

۱- د شاه زمان د شخصیت په اړه څه پوهېږئ؟ ویې لیکئ.
۲- د شاه زمان واکمنۍ د نړۍ له کومې پېښې سره سمون درلود؟
۳- د شاه زمان د واکمنۍ کورنۍ ستونزې کومې وې؟
٤- د سیمې د هېوادو د پټو او ښکاره لاسوهنو موخې وواياست؟



### له ټولګي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د سیمې د هېوادو د لاسوهنو او کړنلارو په اړه له مشرانو پوښتنه وکړي او د معلوماتو له لاس ته راوړلو نه وروسته دې په ټولګي کې وړاندې کړي.

# آیا پوهیږئ شاه محمود لومړی ځل څنګه واک ته ورسېد؟



په تېر لوست کې مو شاه زمان د واکمنۍ په اړه زده کړل. په دې لوست کې به شا محمود د حکومت د څرنګوالي سره آشنايي پيدا کړئ؟

**شاه زمان د** ښکيلاکګرو اصلي سيال بلل کېده. په دې توګه انګرېزانو په هغه وخت کې (**د نفاق واچوه او حکومت وکړه**) د سياست نه په کار اخيستلو سره د سدوزيو ترمنځ د سيالۍ نه ګټه پورته کړه، غوښتل يې چې شاه زمان له منځه يوسي.

د هغوی پام د شاه زمان ورور **شهزاده محمود** او **بارکزي سردار فتح خان** ته چې **ايران** ته تښتېدلي وو، راوګرځېد.

د انګرېزانو په واسطه د توطيو په لاړ اچول او ټول سيمه ييز ځواکونه له يو اړخه، د شاه زمان د ورونو ترمنځ نفاق له بله اړخه د دې زمينه برابره کړه چې **شاه محمود** واک ته ورسيږي. په همدې حالت کې د **انګليس** استعماري سياست پراخوالی مونده، د هېواد په لوېديځ کې هم د **هرات** د وېش لېوالتيا د **قاجاري** دولت له لوري څرګندېده. پر دې سربېره **شاه شجاع د** افغانستان په ختيځ کې او د **پنجاب د سکانو** حکومت په **پېښور** کې د نوموړي پر ضد په جګړه لاس پورې کړ.

د دې ترڅنګ د شاه محمود د دولت د ماتې په موخه د **عبدالرحيم خان غلجايي** په مشرۍ ستر ځواک د **غزني** په لوري حرکت وکړ چې د شاه محمود د ځواکونو له خوا د ماتې سره مخامخ شو. د دې لپاره چې په **کابل**

کې خلک د شاه محمود له ادارې څخه خپه وو، په پاڅون یې لاس پورې کړ او نوموړی یې د کابل په **بالاحصار** کې محاصره کړ، **شجاع الملک** کابل ته راننوت او د **بابر** په بڼ کې استوګن شو. په همدې وخت کې **وزیر فتح خان** له خپل لښکر سره د شاه محمود د خلاصون لپاره له **بامیانو** نه راورسېد، خو د **مختارالدوله** په مشرۍ د شجاع الملک لښکر په **قاضي کلا** کې د هغو مخه ونیوله او فتح خان له ماتې وروسته د **کندهار** په لور شاتګ ته اړ او د شاه محمود له زوی **کامران** سره یوځای شو. د شاه محمود له ماتې او تسلمیدو نه وروسته شجاع الملک بالاحصار ته ننوت او خپله واکمني یې اعلان کړه.



وزیر فتح خان

### په ټولګي کې فعالیت

زده کونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې پدې اړه خبرې وکړي چې انګرېزانو (د نفاق واچوه، حکومت وکړه) له سیاست څخه څنګه ګټه پورته کوله؟ او دویمه ډله دې په دې اړه بحث وکړي چې خپل منځي نفاق، افغانستان کوم لور ته راکاږه.

### پوښتنې

۱- کوم لاملونه سره یو شول او د شاه محمود د واک ته رسېدو لاره یې هواره کړه؟
۲- شاه محمود د خپلې واکمنۍ په وخت له کومو ستونزو سره مخامخ وو؟
۳- شجاع الملک څنګه واک ته ورسېد؟ توضیح یې کړئ.

### له ټولګي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د شجاع الملک د شخصیت په اړه له لویانو څخه معلومات لاس ته راوړي او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

# د شاه شجاع د لومړي ځل واکمنۍ څرنګوالی



په تېر لوست کې مو د شاه محمود د واکمنۍ څرنګوالی او ستونزې مطالعه کړې، په دې لوست کې به د شاه شجاع په کړنو باندې چې په لومړي ځل واکمنۍ کې تر سره کړې او د هند د واکمنۍ په دوره کې د داخلي ستونزو په اړه به معلومات پیدا کړئ.

کله چې د **شاه محمود** په لاس **شاه زمان** ړوند شو، د خلکو زړه بدوالی د شاه محمود په وړاندې ډېر شو او د **شاه شجاع** د فعالیتونو لپاره لار خلاصه شوه. هماغه و چې نوموړی د **کابل** د خلکو په بلنه پلازمېنې ته راننوت او د هېواد چارې یې په لاس کې واخیستې. له کومه ځایه چې د افغانستان خلک د کورنیو جګړو نه په تنګ شوي وو، د هېواد د امنیت غوښتونکي وو. شاه شجاع په یو لړ کارونو لاس پورې کړ، تر څو چې د خلکو هیلې پوره کړي، د بېلګې په توګه خپل ورور شاه زمان یې خوشې کړ. د خپل ورور مخالفین یې وځپل او د هغو له ډلې یې **عاشق شینواری** په دار وځړاوه.

هغه د **بارکزیو** وروڼو په پخلا کېدو لاس پورې کړ او د اړیکو د ټینګولو لپاره یې د **دوست محمد خان** خور ځانته واده کړه. **وزیر فتح خان** ته یې د هېواد په اداري چارو کې برخه ورکړه، خو بیا هم دې کار تر ډېرې مودې دوام ونکړ. وزیر فتح خان د شاه شجاع پر ضد د هېواد په بیلابیلو سیمو کې په لمسون لاس پورې کړ، خو ګټوره پایله یې نه درلوده. په پای کې هغه مهال چې شاه شجاع په **کشمیر** او

**پېښور** کې و، شاه محمود د خپلو پلویانو په ملاتړ له بند نه وتښتېده او د شاه شجاع په ضد یې ځواکونه راټول کړه او په پایله کې شاه شجاع په **گندمک** کې له ماتې سره مخامخ او په دې توگه شامحمود د دویم ځل لپاره پر تخت کښیناست.

شاه شجاع یو فرهنگي سړی او د دري ژبې شاعر هم و چې د کلام بېلگه یې په لاندې څلوریزه کې تر سترگو کېږي.

| | |
|---|---|
| مرغ دلم بـه یـاد وطـن گریـه می کند | این بلبل از فراق چمن گریه می کند |
| تا دل سفر گزید به چین دو زلف او | غربت کشیده بهر وطن گریه می کند |



### په ټولگي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په ټولگي کې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د شاه شجاع د مهمو گامونو په اړه او دویمه ډله دې د شاه شجاع د ماتې په لاملونو خبرې اترې وکړي او پایله دې په ټولگي کې وړاندې کړي.



### پوښتنې

۱- د شاه شجاع د واک ته رسېدو لاملونه ووایاست؟
۲- د بارکزیو وروڼو سره د شاه شجاع د سولې پایله څه وه؟
۳- وزیر فتح خان د شاه شجاع په وړاندې په کومو کارونو لاس پورې کړ؟



### له ټولگي نه د باندې فعالیت

زده کونکي دې له لویانو څخه د پخلاینې د گټو په اړه معلومات لاس ته راوړي او په ټولگي کې دې وړاندې کړي.

# د شاه محمود د دویمې دورې واکمنۍ څرنګوالی



په تېر لوست کې مو د شاه شجاع د لومړۍ دورې واکمنۍ د مهمو پېښو په اړه معلومات پیدا کړل اوس به د شاه محمود د دویم ځل واک ته رسیدو څرنګوالی آشنا شو.

**شاه محمود** په دې بریالی شو چې د **وزیر فتح خان** په مرسته د دویم ځل لپاره د ملک ټول واک لاس ته راوړي. وزیر فتح خان د شاه محمود له اعتماد څخه ګټه واخیستله او د خپل واک د ټینګوالي لپاره یې د وروڼو ترمنځ د هېواد د ولایتونو په وېش لاس پورې کړ. دغه کار د شاه محمود د زوی **کامران** د ناخوښۍ لامل وګرځېده.

دغه مهال شاه محمود یواځې په **کابل** او **کندهار** کې واک درلود او د هېواد لوېدیځو پولو کې ناامني او ګډوډي وه. **شاه شجاع** د هېواد په ختیځو پولو کې خورا نفوذ او ځواک درلوده. د **سدوزیو** او **بارکزیو** ترمنځ سیاسي کشالې، قدرت ته له رسېدو نه پرته نورې ټولنیزې مسالې هم وې چې دغه راز خبرې اترې د شاه محمود د اندېښنې لامل وګرځېدې او خپل زوی کامران یې **هرات** ته واستاوه. نوموړي په هرات کې د وزیر فتح خان د وروڼو پر ضد په غچ اخیستلو لاس پورې کړ چې دده داکار په ټول هېواد کې (له هرات نه تر کشمیره پورې) د تاوتریخوالي لامل وګرځېد. د دغې بلوا له مهمو محرکینو او عاملینو نه یو هم **دوست محمد خان** و.

نوموړی له **کشمیره کابل** ته راغی او د کابل په ښار کې یې شاه محمود د **غزني** په لور شاتګ ته اړ کړ. له دې پېښو سره جوخت د وزیر فتح خان د وروڼو له خوا د ده د مرګ د غچ اخیستلو په موخه تاوتریخوالی زیات شو او د شاه محمود د ماتې لامل وګرځېد. په دې سره د شاه محمود د واکمنۍ دویم دور په ۱۸۱۸ زیږدیز کال کې پای ته ورسېده.



پورتنی انځور د هغه وخت د ښاري ژوند یوه برخه څرګندوي



### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې په دې اړه چې د شاه محمود واکمنۍ تر کومه ځایه پورې غځېدلې وه خبرې اترې وکړي او دویمه ډله دې د خپل منځي تاوتریخوالي په اړه خبرې اترې وکړي او پایله دې ټولګیوالو ته وړاندې کړي.



### پوښتنې

۱– وزیر فتح خان د شاه محمود له اعتماده څنګه ګټه واخیستله؟

۲ - د سدوزیو او بارکزیو د کورنیو ترمنځ تاوتریخوالي له کومه ځایه سرچینه واخیسته؟



### له ټولګي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د مشرانو نه په دې اړه چې د سدوزیو په لړۍ کې کومو کسانو پر افغانستان حکومت کړی، معلومات واخلي او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

## آيا د امير دوست محمد خان د لومړي ځل واکمنۍ سره آشنايي لرئ؟



د امير دوست محمد خان انځور

په تېر لوست کې مو د شا محمود دويم ځل واکمنۍ او د سدوزيو او بارکزيو د خپل منځي شخړو او جګړو په اړه معلومات ترلاسه کړل، په دې لوست کې به د امير دوست محمد خان د لومړي ځل واکمنۍ له څرنګوالي سره آشنا شئ.

وروسته له دې چې **دوست محمد خان** په تدريجي ډول خپل موقعيت په کابل کې ټينګ کړ، د پاچاهۍ او امارت شرايط يې ځانته چمتو کړل، تر دې چې په ۱۸۳۵ زېږديز کال کې د ده په سر د تاج ايښودلو مراسم په ډېره ساده توګه په **کابل** کې ترسره شول او نوموړي ته د **اميرالمؤمنين** لقب ورکړل شو.

امير په لومړي ګام کې بې اعتماده کسان له واک نه ګوښه او پر ځای يې خپل زامن وګومارل، وروسته يې د **سکانو** پر ضد جګړې ته ځان چمتو کړ. د دې جګړې د ترسره کولو لپاره يې مخکې د سوداګرو، هتې والو او نورو قشرونو نه اعانه راټوله کړې وه. د خپلې خوښې پنځوس زره پلي او لس زره سپاره سرتېري يې په (۱۸۳۵) زېږديز کال د **پېښور** پر لور وخوځول. **سلطان محمد خان** د لس زره باجوړي سرتېرو په درلودو سره د **امير د اردو** يوه برخه وه. ددغو ځواکونو خوځېدو د **رنجيت سنګ** په ځواکو کې لويه وېره پيدا کړه. رنجيت سنګ حاضر شو چې له تازه دمو افغانانو سره د روغې جوړې لاره خپله کړي نو يو پلاوی يې د **هارلان** په مشرۍ د امير حضور ته واستاوه. هارلان دنده درلوده چې په هره توګه وي په افغاني لښکرو کې نفاق او درزونه واچوي. د نوموړي پلاوي تر هرڅه دمخه د امير ورور سلطان محمد خان ته پام شو او د پېښور د حکومت د وعدې په ورکولو سره يې پر سکانو د يرغل او جګړې نه مخ وګرځاوه. سردار سلطان محمد خان د لس زره سرتېرو په ګډون د شپې له خوا د امير د

لښکرو نه بېل او له دښمن سره یوځای شو. امیر دوست محمد خان د دې وضعیت په لیدو شاتګ ته اړ او **کابل** ته راستون شو.

په ۱۸۳۶ زېږدیز کال کې د **هند** د نوي وایسرا په توګه د **لارډ اکلنډ** د ټاکل کېدو نه وروسته امیر دوست محمدخان دده په نوم مکتوب ولیکه او په ضمن کې یې د پېښور په مسالې ټینګار وکړ، په دې لاره کې د **انګرېزانو** د دولت د مرستې غوښتونکی شو. نوي وایسرا د امیر د لیک په ځواب کې ولیکل چې د **برتانیې** حکومت د دې هیله مند دی چې د **افغان** او **سک** دولتونه دې د سولې له لارې خپلې مسالې هوارې کړې او برتانیا د نورو هېوادو په کورنیو چارو کې لاسوهنه نه کوي. تر څنګ یې د (**الکساندر برنس**) په مشرۍ یو پلاوی په ښکاره د سوداګریزو مسالو د څېړلو په نامه کابل ته ولېږه. امیر دوست محمد خان کابل ته د **انګلیسي** پلاوي په راتګ ډېر خوښ شو او هیله من و چې یو لړ مسالې د پېښور د مسالې په ګډون د خبرو اترو له لارې حل کړي، خو د امیر د غوښتنو په خلاف یې د انګرېزانو د پلاوي نه د پام وړ ځواب لاس ته را نه وړ.

د دې لپاره چې برتانیا د افغانستان په اړه د **روسیې** او **ناپلیون** د پالیسۍ او موخو نه په وېره کې و له افغانستان سره یې خپله مینه وښودله. امیر دوست محمد خان د انګرېزانو د دې سیاست سره چې پېښور د رنجیت سنګ له ځواکونو څخه تش شي هوکړه وکړه، خو انګرېزانو افغانستان ته د روسي پلاوي راتګ بهانه کړه او له امیر دوست محمد خان سره یې اړیکې وشلولې او له **شاه شجاع** او **رنجیت سنګ** سره یې خپلې اړیکې ټینګې کړې. شاه شجاع چې په لودیانه کې د انګرېزانو تر سیوري لاندې ژوند کاوه، د هغوی سره په خبرو اترو بوخت شو او انګرېزانو دی د خپل یرغل مخکښ وګرځاوه او په ۱۸۳۹ زېږدیز کال یې زموږ پر خاوره یرغل وکړ.



### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د امیر دوست محمد خان د واک ته رسېدو د څرنګوالي په اړه او دویمه ډله دې په افغانستان کې د انګریزانو د سیاست په اړه، په خپلو منځو کې بحث وکړي او پایله دې په ټولګي کې وړاندې کړي.



### پوښتنې

۱- د انګرېزانو استازی هارلان څنګه بریالی شو چې د امیر دوست محمد خان په پوځ کې درز واچوي؟
۲- انګرېزانو ولې پر افغانستان یرغل وکړ؟



### د ټولګي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د خپلو مشرانو څخه د افغانستان په وړاندې د فرانسې او روسیې د پالېسیو په اړه معلومات لاسته راوړي او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

## آیا پر افغانستان د انګرېزانو د لومړي یرغل په اړه معلومات لرئ؟



په تېر لوست کې تاسو د امیر دوست محمد خان د لومړي ځل واکمنۍ د څرنګوالي په اړه معلومات تر لاسه کړل، په دې لوست کې به پر افغانستان د انګرېزانو د مستقیم یرغل په اړه معلومات تر لاسه کړئ.

پر **افغانستان د انګرېزانو** لومړی یرغل د تاریخ له نظره د هند په نیمه لویه وچه کې د سرو زرو تاج ساتنې مفکوره وه. دغې مفکورې د انګرېزانو د سیاسي او پوځي تګلارې بنسټیزه موخه جوړوله. انګرېزان د خپلو استعماري پلانونو د پلي کېدو لپاره د یوې پلمې په لټه کې وو. **مکناټن** د **برتانوي هند** د استازي په توګه له **شاه شجاع** او **رنجیت سنګ** سره اړیکه ټینګه کړه. د ۱۸۳۸ زېږدیز کال د جولای په ۲۵مه د دوی ترمنځ د **لاهور** درې اړخیز تړون لاسلیک شو. په دغه تړون کې مکناټن او رنجیت سنګ ډېر واک درلود، خو شاه شجاع د یو فراري سړي په توګه بې واکه و.

انګرېزانو د دې په بدل کې چې شاه شجاع د افغانستان پر تخت کښېنوي، هغه یې د **سند** په شاو خوا کې د افغاني خاورې له یوې برخې نه لکه **کشمیر**، **پېښور**، **دیره جات** او **خیبر** چې د **دوست محمد خان** د واکمنۍ حدود وو، د رنجیت سنګ په ګټه منصرف کړ او هم یې پرې ومنله چې له هېڅ دولت سره به چې د انګرېزانو د دولت مخالف وي سیاسي اړیکې نه ساتي. د **هرات** خپلواکي چې د هغه د وراره په لاس کې و، ومنې او د هغه ځای په چارو کې به لاسوهنه نه کوي.

د همدغو شرایطو او تړونونو له مخې، انګلیسي ځواکونو د **سرجان کین** تر قوماندې لاندې چې د انګلیس

ځانګړې استازی (مکناټن) او شاه شجاع هم ورسره و. د ۱۸۳۹ زیږدیز کال په فبروري کې د **بلوچستان** او **بولان** درې له لارې پر **کندهار** یرغل وکړ. **کندهاري ورونو د روسیې** له استازي نه د مرستې غوښتنه وکړه، خو روسانو مرسته ورسره ونه کړه. د روسانو د دې کار له امله کندهاري ورونه مایوس شول او بې له جګړې یې په شاتګ وکړ او **ایران** ته وتښتېدل. شاه شجاع کندهار ته راننوت. په کندهار کې مکناټن له شاه شجاع سره یو بل تړون لاسلیک کړ او له هغه یې ژمنه واخیسته چې په افغانستان کې د انګرېزانو تلپاتې ځواکونه او یو سیاسي استازی ځای په ځای شي. په دې ډول انګلیسي ځواکونه له شاه شجاع سره د **غزني** له لارې او **کپتان وېډ** د شاه شجاع له زوی شهزاده **تېمور سره د خیبر** درې او **جلال اباد** له لارې پر **کابل** یرغل وکړ. امیر دوست محمد خان چې د لویدیځو او ختیځو جبهو ترمنځ را ایسار و او جنګي تیاری یې هم نه درلوده، د دښمن له ځواکونو سره له مخامخ کېدو وړاندې یې تېښته وکړه او په **بخارا** کې یې پناه واخیسته او په دې توګه د دښمن ځواکونه کابل ته ننوتل.

امیر دوست محمد خان ونه شو کولی چې له روسیې نه هغه مرستې ترلاسه کړي چې په بخارا کې یې ورته انتظار درلود، له همدې امله خپه او نهیلی بیرته افغانستان ته راستون شو، ځان یې انګرېزانو ته وسپاره او هغوی بیا **کلکتې** ته واستاوه.



### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د افغانستان لپاره د انګرېزانو د پالیسۍ او سیاست په اړه او دویمه ډله دې د لاهور د درې اړخیز تړون په اړه خبرې اترې وکړې او پایله یې د هرې ډلې استازی په ټولګي کې وړاندې کړي.



### پوښتنې

۱- کومو مسایلو پر افغانستان د انګرېزانو د برید سیاسي او پوځي تګلاره جوړوله؟
۲- د لاهور تړون څه وخت او د کومو اشخاصو ترمنځ لاسلیک شو؟
۳- انګرېزانو له کومو لورو او د کومو اشخاصو تر قوماندې لاندې پر افغانستان یرغل وکړ؟
٤- د کندهار په تړون کې مکناټن له شاه شجاع نه کومه ژمنه واخیسته؟ وې وایاست.



### له ټولګي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د خپلو مشرانو په مرسته په افغانستان د انګرېزانو د لومړي یرغل او د هغه د ناوړو پایلو په اړه معلومات ترلاسه کړي او په ټولګي کې دې ولولي.

# آیا د شاه شجاع د دویم ځل واکمنۍ په اړه معلومات لرئ؟



په تېرو لوستونو کې مو په هېواد د انګرېزانو د لومړي یرغل، د هغوی موخې او د امیر دوست محمد خان د واکمنۍ په اړه معلومات لاس ته راوړي، اوس په دې لوست کې به د شاه شجاع د حکومت له څرنګوالي سره آشنا شئ.

وروسته له دې چې **انګرېزان** او **شاه شجاع** یو ځای کابل ته راننوتل، نوموړي د انګرېزانو په تکیه د **کابل** په **بالاحصار** کې څلور کاله پاچاهي وکړه. انګرېزي سفیر (**مکناټن**) د لومړي وزیر او نایب السلطنه په توګه دنده ترسره کوله. **الکساندر برنس** د کورنیو چارو د وزیر حیثیت درلود. **موهن لال** د ضبط او حوالاتو مسوولیت پر غاړه درلوده. د انګرېزانو ځینې سیاسي او پوځي مامورین د هېواد په بېلا بېلو سیمو کې د چارو سلاکاران بلل کېدل. دا ځکه چې په افغانستان کې یې د تلپاتې استوګنې هوډ درلود. خپل ځواکونه یې په **کابل**، **کندهار**، **کلات**، **غزني**، **وردګ**، **چاریکار**، **بامیان** او **جلال آباد** کې ځای په ځای کړل.

انګرېزان په دې فکر کې وو چې خپله سترېا وباسي، خو داګمان یې بې ځایه و. د هغوی ظلم او زیاتی، د خلکو ناخوښي، د پوځي لګښتونو زیاتوالی، د هېواد د عوایدو کموالی، د مالیو تحمیلول، د نرخونو لوړوالی، د وخت له واکمن نه د خلکو کرکه، دا ټول هغه لاملونه وو چې یو لوی ملي پاڅون ته یې لاره هواره کړه.هماغه و چې د **غلجیو**، **زرمتو**، **خوګیاڼو**، **کوهدامن** او **کوهستان** مېړنیو خلکو د سرکشۍ نښانې روښانه شوې چې ملي مشرانو د ملي خوځښتونو هستې ته وده او پراختیا ورکړه. د **نواب باغ** په کوڅه کې د **اڅکزي عبدالله خان** په کور کې د یرغل پلان جوړ شو او یوه دولس کسیزه شورا جوړه شوه چې په هغې کې **نواب زمان خان** د ریس او **امین الله خان لوګري** د مرستیال په توګه وټاکل شول، تر څو د سولې او جګړې چارې په غاړه واخلي.

د ۱۸٤۱ زېږدیز کال د نوامبر دویمه د افغانانو لپاره د ملي پاڅون او بریالیتوبونو لویه ورځ او د برتانیې لویې امپراتورۍ د ماتې ورځ بلل کېږي. په دې معنا چې له جوړ شوي پلان سره سم یې د کابل د بالاحصار په لمنو چې د انګلیسي

مامورینو او منصبدارانو قرارگاه وه یرغل وکړ. د برنس کور ته یې اور واچاوه او دی یې په خپله له تېغه تېر کړ. مبارزینو په دویمه ورځ د انگرېزانو په نورو کلاگانو باندې چې د کابل په ښار کې وې یرغل وکړ. په دې اړو دوړ کې د جهاد غږ د کابل **شېرپور کروهي** ته ورسېده او خلکو ډله ډله په دې ملي جهاد کې گډون وکړ. له نېکه مرغه چې **سردار وزیر محمداکبر خان** کابل ته راغی او د نواب زمان خان په ځای یې د جهاد مشري په لاس کې واخیسته. انگرېزانو چې خپل حالت ستونزمن ولیده له سردار محمد اکبر خان سره خبرو اترو ته کښېناستل، انگرېزانو غوښتل چې په دې خبرو کې سردار محمد اکبر خان ووژني، خو محمد اکبر خان له فرصت نه په گټه اخیستنې پر مکناټن یرغل وکړ او د تفنگچې په ډز یې وواژه.


وزیر اکبر خان

د جگړې په ترڅ کې ډېر شمېر انگریزان ووژل شول او د دوی په خپله وینا له ۱۶۵۰۰ تنو نه یواځې یو کس (**ډاکټر برایډن**) په نیم ژواندي حالت کې **جلال آباد** ته ورسېد او د خپلو لښکرو د تباهۍ کیسه یې وکړه. انگرېزانو په کابل کې د خپل لښکر له ماتې څخه وروسته په غچ اخیستو لاس پورې کړ او تازه دمه لښکر یې د یرغل لپاره چمتو کړ.

وزیر اکبر خان د کابل په لور د **جنرال پالک** په مشرۍ د انگرېزي ځواکونو له حرکت نه خبر شو او مقابلې ته یې ورودانگل، خو د امیر دوست محمد خان له لاربښوونې سره یې سم د **تاشقرغان** په لور شاتگ وکړ. د **پالک** او **سیل** ځواکونه له جلال اباد نه کابل ته ننوتل او د خپل د لاسه تللي حیثیت د بیا راگرځولو لپاره یې د کابل چهار **چتې بازار** او ښکلي **ستالف** ته اور واچاوه. ناځاپه د انگرېزانو له ذهنه د افغانستان د نیولو مفکوره ووته. دوست محمد خان یې له بنده ازاد کړ چې افغانستان ته ستون او یوځل بیا د کابل په تخت کښیني. په دې توگه د انگرېزانو د یرغل لمن ټوله شوه. په دې ماتې سره د انگرېزانو حیثیت په ټوله اسیا ان په ټوله نړۍ کې ټیټ شو. د انگرېزانو کابینه بدله شوه، له دې څخه وروسته انگرېزانو د افغانستان په اړه خپلې کړنلارې ته بدلون ورکړ او تر ډېرې مودې پورې یې زموږ هېواد پر خپل حال پرېښود، په بدل کې یې د افغانانو ستر ویاړونه په برخه شول.

### په ټولگي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د شاه شجاع د واک ته رسېدو په څرنگوالي، دویمه ډله دې د انگرېزانو د ماتې په اړه بحث وکړي او خپل نظرونه دې له نورو ټولگیوالو سره شریک کړي.

### پوښتنې

۱- انگرېزانو د خپل اوږد مهال شتون په موخه خپل ځواکونه د افغانستان په کومو سیمو کې مېشت کړل؟

۲- د انگرېزانو پر ضد د افغانانو د ملي پاڅون او خوځښتونو لاملونه کوم وو؟ روښانه یې کړئ.

۳-په افغانستان کې د انگرېزانو ماتې د انگلیسي سیاست پوهانو په افکارو کې څه بدلون منځ ته راوړ او په کومو مسایلو یې اعتراف وکړ؟

### له ټولگي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د خپلو مشرانو په مرسته د هغو ملي مبارزینو او غازیانو په اړه چې انگرېزانو ته یې ماتې ورکړې، معلومات ترلاسه کړي او په ټولگي کې دې ووایي.

# آيا د امير دوست محمد خان د دويم ځل واکمنۍ په اړه پوهېږئ؟


د مزار شريف په روضه کې د وزير محمد اکبر خان د زيارت انځور

په تېر لوست کې مو د شاه شجاع د دويم ځل واکمنۍ او د انګرېزانو د لومړي يرغل د انګېزو او موخو په اړه معلومات لاس ته راوړل، په دې لوست کې به د امير دوست محمد خان د دويم ځل واکمنۍ په ارزښت پوهېږئ.

څنګه چې په تېر لوست کې وويل شول، انګرېزانو د خپلې څلور کلنۍ ولکې ترخې تجربې څخه زده کړل چې په افغانستان کې پاتې کېداى نه شي، له همدې امله د حل لارې د پيدا کولو او نويو اړيکو ټينګولو په فکر کې شول. هغوی د **امير دوست محمد خان** د دويم ځل واک ته رسېدو ته راضي شول، له دې امله چې زنداني امير له ټولو پېښو نه بې خبره پاتې شوی و، افغانستان ته په بېرته راستنېدو کې يې په انګرېزانو هېڅ ډول قيد و شرط کښېنښود، له همدې امله چې د **برتانوي هند** دولت عملاً افغانستان په ملوک الطوايفيو باندې وېشلی وي او هم په افغانستان کې د نفاق زياتوالی راوړي، امير دوست محمد خان يې د درې ګونو ولاياتو (**کابل**، **غزني** او **جلال اباد**) د امير په توګه ومانه.

وروسته له دې چې امير دوست محمد خان پاچا شو لومړی يې د هېواد د کورني وضعې په سمون کولو لاس پورې کړ. د دې لپاره چې د ملوک الطوايفيو په رامنځ ته کېدو او د جګړو په پېښېدو سره، د هېواد وضعيت په عمومي ډول خراب شوی و، بيا يې د سياسي يووالي او د مرکزي دولت د ټينګښت لپاره هڅې وکړې، د ټولو قوماندانانو په تېره بيا د **وزير محمد اکبر خان** په مېړانه يې له **باميان** څخه تر **مزار** او **هراته** پورې سيمې فتح کړې، وروسته يې د **تګاب** او **نجراب** د خلکو بغاوتونه له منځه يوړل او د **خوګيانيو** د خلکو خوځښتونه يې غلي کړل.

لنډه دا چې وزیر محمد اکبر خان د یوه فاتح، هېوادپاله او سرښندونکي سړي په توګه د افغانستان په سیاسي یووالي کې ډېر زیار وایسته. نوموړی په پای کې د نهه ویشت کلو په عمر په ۱۸۴۶ زیږدیز کال کې یوه **هندي ډاکټر** په زهر لړونکو ګولیو په شهادت ورساوه او د **مزار شریف** په **روضه** کې خاورو ته وسپارل شو. امیر دوست محمدخان د وزیر محمد اکبرخان له مېړمنې څخه وروسته خپل بل زوی شهزاده غلام حیدرخان خپل ځای ناستی وټاکه.

د وزیر اکبر خان مړینې د افغانستان ټول هېواد پالونکي خلک خواشیني کړل. له دې سره جوخت د **سکانو** حکومت د **رنجیت سنګ** تر مړینې وروسته کمزوی شوی و، انګرېزانو په **پنجاب** کې پرمختګ وکړ او د پنجاب زیاتره سیمې یې ونیولې، امیر دوست محمد خان د **پېښور** او د هغه شاوخوا سیمو د لاس ته راوړلو لپاره هڅه وکړه، خو ځای یې ونه نیوه، له بلې خوا یې د **هندوکش** د شمال ټول ولایتونه هم لاس ته راوړل، د ملوک الطوایفیو د له منځه وړلو په موخه یې د پام وړ ګام واخیست او ځلانده بریالیتوبونه یې په برخه شول.

امیر دوست محمد خان بیا خپل پام د **هرات** او **کندهار** لور ته وګرځاوه. کندهار په ۱۸۵۵ زیږدیز کال کې **د کندهاري سردارانو** ترمنځ د مخالفتونو له امله د **امیر دوست محمد خان** لاس ته ورغی او د مرکزي دولت تر اداري لاندې راغی. د هرات وضعیت هم دا مهال ښه نه و. **ایرانیانو** د هغه د لاس ته راوړلو لپاره هڅې کولې. کله چې **یار محمد خان الکوزی** مړ شو، ایرانیانو بریالیتوبونه هم لاس ته راوړل. امیر دوست محمد خان دا ښار وروسته له سختې جګړې څخه د ۱۸۶۳ زیږدیز کال د مې په میاشت کې ونیو، په **افغانستان** کې یې د **روسیې** د پرمختګ مخه ونیوله او په دې توګه د اوسني افغانستان سیاسي یووالی بشپړ شو.

امیر دوست محمد خان تر شل کاله واکمنۍ وروسته د ۱۸۶۳ زیږدیز کال د جون په میاشت کې په هرات ښار کې مړ او د **خواجه عبدالله انصاري** (رح) د مقبرې ترڅنګ ښخ شو.

### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د سیمه ییزو حکومتونو د له منځه وړلو په څرنګوالي او دویمه ډله دې د امیر دوست محمد خان د شخصیت په اړه د دویم ځل پاچاهی په وخت کې په خپلو کې خبرې اترې وکړي او پایله دې په ټولګي کې وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱- د امیر دوست محمد خان د دویم دور واکمنۍ مهمې کړنې په ګوته کړئ؟
۲- د مرکزي دولت په ټینګولو کې د وزیر محمد اکبر خان رول روښانه کړئ؟
۳- انګرېزانو د امیر دوست محمد خان د حکومت په وړاندې څه دریځ نیولی و؟

### له ټولګي نه د باندې فعالیت

زده کونکي دې د لویانو او مشرانو څخه د وزیر محمد اکبر خان د سیاسي او ټولنیز شخصیت په اړه معلومات لاس ته راوړي او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

# آیا د امیر شېرعلي خان له لومړي ځل سلطنت سره اشنایي لرئ؟



په تېر لوست کې د امیر دوست محمد خان د دویم ځل سلطنت سره بلد شوئ. په دې لوست کې به د امیر شېرعلي خان د شخصیت او د نوموړي د اداري نظام د ستونزو په اړه به معلومات پیدا کړئ.

د **امیر دوست محمد خان** له مړینې څخه وروسته **شهزاده شېرعلي خان** د هغه ځای ناستی چې د تاج او تخت وارث و، د فاتحې له مراسمو څخه وورسته په ۱۸۶۳ زېږدیز کال د ۴۱ کلنۍ په عمر، خپله پاچاهي اعلان کړه او د دې موضوع خبر یې خپلو وروڼو ته چې د هېواد په هر گوټ کې وو ورساوه. په ښکاره ټولو وروڼو د **محمداعظم خان** په گډون له هغه سره خپل بیعت اعلان کړ. **شېرعلي خان** خپل زوی **محمد یعقوب خان** د **هرات** د چارو د سمبالولو لپاره وگوماره او په خپله د کورنۍ له نورو غړو سره د **کابل** په لوري روان شو.

محمداعظم خان چې ځان غوښتونکی سړی و، د کابل په لور د **امیر شېرعلي خان** د سفر ملگری و، خو د **شینډنډ** په سیمه کې د امیر نه بیل شو او د هزاره جات پر لور خپل سکني ورور **محمد حسین خان** ته چې د هزاره جاتو حاکم و ورغی او هیله یې درلوده چې د خپل ورور او هزاره جاتو د خلکو په مرسته د سلطنت واگې تر لاسه کړي، بلاخره محمد اعظم خان د خپلو وروڼو په مرسته یو لښکر جوړ او د امیرشېرعلي خان سره یې مقابله وکړه، خو د امیر د لښکرو سره یې د جگړې توان نه درلود، د انگرېز دولت ته یې پناه یوړه. له بلې خوا

**عبدالرحمن خان** هم د امیر شېرعلي خان د حکومت پر ضد په پاڅون لاس پورې کړ او د **هندوکش** د **باجګاه** په دره کې جګړه پېښه شوه. عبدالرحمن خان له ماتې سره مخامخ او بخارا ته يې پناه يوړه.

امیر شېرعلي خان تمه درلوده چې دننه په هېواد کې مرکزي دولت ټينګ او د نوي تمدن په رواجولو او پرمختيا کې فعاله ونډه واخلي، امیر په بهرني سياست کې د افغانستان د خپلواکۍ د ځواکمنتيا غوښتونکی و. خو د خپلو ورونو د مخالفت او د کورنۍ جګړې له امله يې ونشو کولای چې د خپل سلطنت په لومړۍ دوره کې د خپلو پلانو په پلي کولو بريالي شي.

هغه موضوع چې اميرشېرعلي خان يې بې اندازې خواشيني او ګوښه ګير کړ، د هغه د زوی **شهزاده محمد علي خان** مړينه وه چې د **سردار محمد امين خان** سره په جګړه کې په **کندهار** کې ووژل شو. دغې ګوښه ګيرۍ او يوازېتوب عبدالرحمن خان په **بخارا** کې وهڅاوه چې د محمداعظم خان په ملتيا پر **کابل** يرغل وکړي او په خپله ولکه کې يې راولي.



### په ټولګي کې فعاليت

زده کونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د امير شېرعلي خان د ورونو د بې اتفاقۍ په اړه او دو يمه ډله دې د اميرشېرعلي خان د ګوښه ګيرۍ او يوازيتوب په اړه په خپل منځ کې خبرې اترې وکړي او پايله دې په ټولګي کې وړاندې کړي.



### پوښتنې

۱- د اميرشېرعلي خان د واک ته رسيدو څرنګوالی بيان کړئ؟
۲- ولې محمداعظم خان انګرېزانو ته پناه يوړه؟
۳- ولې امير شېرعلي خان ونشو کولای چې خپلې تګلارې پلي کړي؟



### له ټولګي نه د باندې فعاليت

زده‌کوونکي دې د اميرشېرعلي خان د شخصيت په اړه د مشرانو څخه معلومات لاس ته راوړي او په ټولګي کې دې وړاندې کړي.

# آیا د امیر محمدافضل خان د شخصیت سره پېژندګلوي لرئ؟



تېر لوست د امیر شېر علي خان اداري ستونزو ته ځانګړی شوی و، په دې لوست کې به د امیر محمد اعظم خان لنډې واکمنۍ ته یوه کتنه وکړو.

کله چې **محمداعظم خان** او **عبدالرحمن خان** کابل په خپله ولکه کې راوست، **محمدافضل خان** یې پاچا وټاکه او د امیر د پاچاهۍ خبر یې هغو انګرېزانو ته ورکړ چې په **هند** کې مېشت وو. انګرېزانو پرته له ځنډه د امیر محمدافضل خان حکومت په رسمیت وپېژانده او بیا یې خپل سیاسي استازی په **کابل** کې استوګن کړ. څرنګه چې برحاله پادشاه په کابل کې د واک څښتن و او د خلکو له خوا منل شوی و، **امیر شېرعلی خان** د خپلې واکمنۍ د ساتلو په موخه له **کندهار** څخه د کابل پر لوري لښکر وویست، خو په **کلات** کې یې د سردار محمدافضل خان او عبدالرحمن خان د ځواکونو له لاسه ماته وخوړه او د **هرات** په لوري د خپل زوی **محمد یعقوب خان** خوا ته پر شا شو.

کله چې امیر شېرعلي خان په هرات کې استوګن شو، د **اقچې** پخواني حاکم **فیض محمد خان** د نوموړي سره اړیکې ټینګې کړې او هغه ته یې د مرستې وعده ورکړه چې دواړو په ګډه د **میمنې** او **مزار** له خوا په **۱۸۶۷** زیږدیز کال کې د کابل پر لوري حرکت وکړ. خو د سردار عبدالرحمن خان له خوا د **پنجشیر** د **بازارک** په سیمه کې د شېرعلي خان د پرمختګ مخ نیوی وشو چې په پایله کې فیض محمد خان مړ او شېرعلي خان د هرات لور ته پر شا ولاړ. په دې وخت کې امیر محمدافضل خان ته ناروغي وریېښه او له نړۍ څخه یې سترګې پټې کړې، په دې ډول یې یو کلنه واکمني یې پای ته ورسېده.



په هرات کې د یو جومات ودانۍ

**په ټولګي کې فعالیت:** زده‌کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي او یو تر بله دې د امیر شیرعلی خان د ورونو ترمنځ د اخ و ډب د لاملونو په اړه بحث وکړي او هغه دې په ټولګي کې وړاندې کړي.

**پوښتنې**

۱- امیر محمدافضل خان څنګه واک ته ورسېد؟

۲- امیر محمدافضل خان په خپله لنډه واکمنۍ کې له کومو ستونزو سره مخامخ و؟

## آیا د امیر محمد اعظم خان د شخصیت په اړه معلومات لرئ؟



په تېر لوست کې مو د امیر محمد افضل خان لنډ مهاله واکمنی وڅېړله، په دې لوست کې به د امیر محمد افضل خان د واکمنی په اړه معلومات ترلاسه کړئ.

**محمد اعظم خان** هم د **امیر عبدالرحمن خان** د توري په زور سلطنت ته ورسېد خو **محمداعظم خان** ځان غوښتونکی او جاه طلبه سړی و، واک ته تر رسېدو وروسته یې وغوښتل چې عبدالرحمن خان له مرکز نه لرې کړي. نو ځکه یې هغه په دې پلمه د هېواد شمالي برخو ته ولېږه ترڅو په **بلخ** کې **امیر شېرعلي خان** تر ښارنې لاندې ونیسي.

امیر عبدالرحمن خان سره له دې چې نه یې غوښتل له مرکز څخه لرې شي، دا امر یې ومانه، هغه ولایت ته ولاړ او هلته یې د **ایبکو**، **تاشقرغان**، **سرپل**، **شبرغان** او **اقچې** خانان او امیران تر ښارنې لاندې ونیول، هغوی یې مرکزي حکومت ته تابع کړ، وروسته د **میمنې** پر لوري ولاړ او هغه ځای یې  هم محاصره کړ.

امیر شېرعلی خان د امیر عبدالرحمن خان د بوختیا په شمالي برخو کې خبر شو. د خپل زوی **سردار محمد یعقوب خان** سره یې د **کندهار** پر لور هوډ وکړ، دکندهار نایب الحکومه چې د محمداعظم خان زوی و، هغه ته یې ورکړه او د **غزني** په لور یې پرمختگ وکړ، محمد اعظم خان چې خپل ځان په خطر کې ولید، عبدالرحمن خان ته یې خبر واستاوه او د نوموړي اطاعت یې وکړ او کابل ته ننوت او د محمد اعظم خان په ملتیا د غزني پر لوري ولاړل. په

۱۸۶۸ زیږدیز کـال کې د شش گاو په سیمه کې د عبدالرحمن خان او د امیر شېرعلی خان د لښکرو تر منځ سخته جگړه پېښه شوه، د عبدالرحمن خان لښکرو ماته وخوړه او امیر شېرعلی خان په بریالي توگه **کابل** ته ننوت. امیرمحمداعظم خان **ایران** ته وتښتېد، هلته ناروغه او بیا مړ شو. امیر عبدالرحمن خان د **بخارا** پر لوري شاتگ وکړ او د روسیې حکومت د هغه هرکلی وکړ.

امیر محمداعظم خان د خپل سلطنت په لنډه موده کې د پوه وزیر **سید جمال الدین افغان** په مرسته گڼ شمېر عرفاني او عمراني پلانونه پلي کړل چې د هغو له ډلې څخه د افغانستان لومړنۍ مجله چې د **کابل** په نوم یادېده، خپره شوه.



افغان سید جمال الدین

### په ټولگي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي او په خپلو کې دې د محمداعظم خان د دورې د مهمو اقداماتو په اړه پوښتنې وکړي او په ټولگي کې دې ځوابونه ووایي.

### پوښتنې

۱- د محمداعظم خان د واک ته د رسېدو څرنگوالی توضیح کړئ.

۲- محمداعظم خان د رغاونې کوم پروگرامونه په پام کې درلودل؟ څرگند یې کړئ.

### له ټولگي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د امیر محمداعظم خان د شخصیت په اړه له مشرانو څخه معلومات ترلاسه کړي او په ټولگي کې دې ولولي.

# آیا د امیر شېرعلي خان د دویم ځل سلطنت سره پېژندګلوي لرئ؟



په تېر لوست کې تاسو د امیر محمد اعظم خان د سیاسي شخصیت سره اشنایي پیدا کړه. په لاندې لوست کې به د امیر شېر علي خان د دویمې دورې واکمنی رغنیزو او پراختیایي تګلارو سره بلد شئ.

**امیر شېر علي خان** د ۱۸۶۸ زیږدیز کال په پای کې په **شش ګاو** کې د **امیر محمداعظم خان** او **عبدالرحمن خان** له ماتې څخه وروسته بیا کابل ته راغی او په تخت باندې کښیناست. امیر شېرعلي خان یو پوه او هېواد پالونکی پاچا و، دی په افغانستان کې د نوي تمدن رامنځ ته کوونکی پېژندل کېږي. په ۱۸۶۹ زیږدیز کال کې یې له **برتانوي هند** نه لیدنه وکړه، مینه یې د لوېدیځ تمدن او ټکنالوژۍ په برخه کې ډېره شوه او هغه یې وهڅاوه چې په یو شمېر کورنیو اصلاحاتو باندې لاس پورې کړي او د افغانستان سیاسي یووالي ته نوی رنګ او ځېره ورکړي.

## د نوي تمدن پېژندنه

امیر شېرعلي خان د لوی مدنیت بنسټ ایښودونکی او د هېواد د فرهنګي او صنعتي وضعې بدلوونکی پېژندل شوی، د **اروپا** له **صنعتي انقلاب** سره سم، په افغانستان کې د اصلاحاتو لاره هواره شوه. د دې لارې له مخکښانو څخه یو هم **سیدجمال الدین افغان** و چې د هېواد د عصري کولو تګلارې یې پیل کړې. امیر شېر علي خان د خپلواکۍ د ساتلو او د پردیو د تېري د مخنیوي لپاره سل زره کسیز لښکر جوړ کړ او هغه یې په ا تو پوځي مرکزونو ووېشه. د **شمس النهار** جریده یې خپره کړه او چاپ خونې یې هېواد ته راوړې. د توپونو او ټوپکو جوړولو لپاره یې کارخانې جوړې کړې. لومړنی ټولنیز ښوونځی یې پرانیست چې ملکي او پوځي ښاګنې یې درلودې. په دې خوځښت سره یې د پوهنې د کچې

راټيټېدو مخنيوی وکړ. پوسته خانې يې جوړې کړې، د کابل په اوسني **شېرپور** کې يې د پوځيانو لپاره د نوي ښار بنسټ کېښود. د مالياتو ورکول له وجې نه په نقدو بدل شول، د عدالت رامنځ ته کولو لپاره يې په غوڅو اقداماتو **لاس** پورې کړ. ظالمانه او چپاولگر حکام يې له منځه يوړل. د هېواد اداري تشکيلات يې په نوي بڼه بدل او د افغانستان لومړنۍ کابينه يې د وخت صدراعظم **سيد نور محمدشاه** په مشرتابه جوړه کړه. هغه مخالفتونه چې د هېواد په شاوخوا کې موجود وو له منځه يې يوړل او وروسته يې وغوښتل چې **انگرېزان** د خپل دولت د پېژندنې لپاره اړ کړي.

انگرېزانو د دوستۍ شرايط د خپلو استعماري مقصدونو لپاره طرح کړل. هغوی هيله درلوده چې خپل استازي په **کابل**، **کندهار** او **هرات** کې د تل لپاره پاتې کړي چې د **روسانو** حرکات له نږدې څخه وڅاري. سربېره پر دې يې وغوښتل امير دې ته اړ کړي چې د انگرېزانو دولت د خپل ځان ملا تړی ومني. خو اميرشېرعلي خان د دوی د غرض نه ډکو فکرونو ته ارزښت ورنه کړ او د انگرېزانو په ځواب کې يې وويل: زه د افغانستان خاورې ته ستاسو د سياسي او پوځي استازو په راتگ پر تاسو اعتماد نلرم، د دې طرحې په پلمه به يوه ورځ زما پر هېواد تېری وکړئ.

امير شېر علي خان د انگرېزانو سره په معمولي ډول خپلې اړيکې وساتلې. له **روسيې** سره چې په منځنۍ آسيا کې يې د پرمختگ په تمه وو د افغانستان نږدې کېدو، وضع يې کړکيچنه کړه او د **افغان او انگليس د دويمې جگړې** پلمه برابره شوه، هغه څه چې د دې جگړې اور ته يې ډېر قوت وروباښه د شير علي خان له خوا د وليعهد په توگه د خپل کمکي زوی **شهزاده عبدالله** ټاکنه وه. دې موضوع **شهزاده يعقوب خان** بې اندازې خواشينی کړ، نو په بلواگانو او سرغړونو يې پيل وکړ، خو امير شېر علي خان دغه سرغړونې ارامې کړې. انگرېزانو له يوې خوا له دې موضوع نه گټه واخيستله او له بلې خوا د روسانو پرمختگ منځنۍ اسيا ته په تېره بيا د هغوی له خوا د **خېوې** او **مروې** نيولو، د انگرېزانو پاملرنه د افغانستان پر لوري ډېره کړه. هغوی په خپل وار سره **بلوچستان** چې د افغانستان يوه برخه وه لاس ته راوړه چې دې تېري د امير کرکه د انگرېزانو په وړاندې دوه برابره کړه او په دې توگه پر افغانستان د انگرېزانو دويم يرغل پيل شو.

### په ټولگي کې فعاليت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو باندې ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د سيد جمال الدين افغان د شخصيت او د نوي تمدن د پيژندگلوي په اړه او دويمه ډله دې د امير شېرعلي خان د اصلاحي تگلارو په اړه خبرې وکړي او پايله دې په ټولگي کې بيان کړي.

### پوښتنې

۱- امير شېر علي خان په کوم کال کې واک ته ورسېد او د هغه واکمنۍ له کومې نړيوالې پېښې سره سمون درلود؟
۲- امير شېر علي خان د کومو کسانو په مرسته د لومړي ځل لپاره عصري تگلارې پلې کړې؟
۳- د امير شېر علي خان د نوي تمدن رامنځ ته کولو او کورنيو اصلاحاتو په اړه چې څه پوهېږئ ويې ليکئ.

### له ټولگي نه د باندې فعاليت

زده‌کوونکي دې د خپلو مشرانو څخه د امير شېرعلي خان د نوي تمدن موخې او د هغه د تگلارو په اړه معلومات ترلاسه کړي او بيا دې په ټولگي کې وړاندې کړي.

## آیا پر افغانستان د انګریزانو د دویم تېري په اړه معلومات لرئ؟



تېر لوست د امیر شېرعلی خان دویم ځل سلطنت ته ځانګړی شوی و، په دې لوست کې به پر افغانستان د انګرېزانو د دویم ځل تېري په اړه معلومات تر لاسه کړئ.

د تېري له پیل څخه وړاندې امیر شیرعلی خان یو هیئت د سید نورمحمدشاه به مشرۍ د پېښور کنفرانس ته واستاوه، خو د **پېښور** په کنفرانس کې د صدراعظم **سید نور محمد شاه** اوږدې مذاکرې سرته ونه رسېدلې، خپله صدراعظم هم د کنفرانس په بهیر کې ناروغ او په پېښور کې مړ شو. په دې وخت کې روسیې یو سفیر چې جنرال **ستیلاتوف** نومېده **کابل** ته راواستاوه. د دې سفیر را تګ، د **هند** سیاستوال ډېر اندېښمن کړه، د **برتانوي هند** چارواکو د خپلو ګټو د خوندي ساتلو یواځینۍ لار پر افغانستان تېری وباله او دویم ځل یې په تېري لاس پورې کړ. د انګریز عسکرو له بشپړو تجهیزاتو سره د ۱۸۷۸ زیږدیز کال د نوامبر په ۲۰ مه نېټه د **خیبر** د درې له لارې په **کرمه** او **بولان** د افغانستان په پولو باندې تېری وکړ. **امیر شېر علی خان** د خفګان په حال کې **کابل** پرېښود، د روس د مرستې په تمه **مزار شریف** ته ولاړ او په هغه ځای کې یې د ۵۸ کلو په عمر په ۱۸۷۹ زیږدیز کې د ناروغۍ له امله له نړۍ څخه سترګې پټې کړې. د ده تر مړینې وروسته په کابل کې حالات خړ پړ شول. هېواد او خلک په یوه سیاسي تشه کې پاتې شول. انګرېزانو او د هېواد دښمنانو پرمختګ وکړ. په دې وخت کې ځینې سردارانو، **شهزاده محمد یعقوب** د پاچا په توګه وټاکه.

### د امیر محمد یعقوب خان واکمني

**امیر محمد یعقوب خان** په داسې مهال کې پاچاهۍ ته ورسېد چې د انګرېزانو لښکر په عصري وسلو سمبال و او افغانستان یې د یرغل په پایله کې تر خپلې ولکې لاندې راووست. نوموړی یې **ګندمک** ته چې د انګرېزي لښکر ځای و بوته او د ګندمک تړون یې په ۱۸۷۹ کال د می په ۲۶ نېټه له انګرېزانو سره لاسلیک کړ.


امیر محمد یعقوب خان

د گندمک تړون په داسې حال کې لاسلیک شو چې په ټول هېواد کې گډوډي روانه وه او امیر محمد یعقوب خان هم د کابل په ښار کې د نورو کسانو تر سیوري لاندې ژوند کاوه. هغه په ټول هېواد کې د پاچا په توگه پېژندل شوی نه و، نو له دې امله دغه تړون حقوقي ارزښت نه درلود. د همدې تړون په بنسټ **خیبر**، **کورمه**، **پښین** او **سیالکوټ** له افغانستان نه بېل او د **بریتانوي هند** برخه وگرځېده. د افغانستان سیاسي خپلواکي هم له خطر سره مخامخ شوه. انگرېزانو یو کس چې د **سرلویس کیوناري** په نامه یادېده او د گندمک تړون د لاسلیک کولو پر مهال یې د انگرېزانو استازیتوب کاوه، په کابل کې د انگرېزانو د استازي په توگه وټاکه او د انگرېزانو نور استازي د افغانستان په مهمو ښارونو کې ځای پر ځای شول. د افغانستان خلکو د همدې حال په لیدو سره د یرغلگرو په وړاندې پاڅون وکړ، د کیوناري په کور باندې یې یرغل وروړ او هغه یې وواژه. په همدې توگه یو ځل بیا د افغانستان د نیولو په اړه د یرغلگرو فتنه شنډه شوه.

د مجاهدینو مخکښانو لکه **محمدجان خان وردگ**، **ملا مشک عالم**، **صاحب جان تره کي**، **سردار محمد ایوب خان**، **محمدعثمان خان صافي** او نورو په بېلابېلو سیمو کې په تېري کوونکو باندې یرغلونه وکړل. د هغو جگړو له ډلې څخه یوه چې د انگرېزانو لښکر یې ډېر خواشینې کړی وه، د **میوند** جگړه وه. په دې جگړه کې د افغاني ځواکونو مشري د امیر شېرعلي خان د زوی **سردار محمد ایوب خان** په غاړه وه. په ۱۸۸۰ زېږدیز کال د جولای په ۲۷ مه نېټه د میوند په ډگر کې سخته جگړه پېښه شوه چې د مبارزینو په بري او د انگرېزانو په سختې ماتې سره پای ته ورسېده.

په دې مشهوره جگړه کې چې د انگرېزانو حکومت یې په هند کې ولړزاوه، د افغانانو ښځوهم برخه اخیستې وه. پېغلې **ملالې** د میوند د جگړې په ډگر کې د ملي لښکر د شهید شوي بیرغچي پر ځای ملي بیرغ په خپله اوږه راپورته کړ او د دې **لنډۍ** په ویلو یې د افغاني لښکر وینې د جگړې په ډگر کې په جوش راوستې.

**که په میــوند کې شهیــد نه شوې — خدایږو لالیه بې ننگۍ ته دې ساتینه**

د کابل خلکو د پاڅون په پایله کې د **شېرپور** په سیمه کې د انگرېزانو قواوې کلابندې کړې، تردې چې سردار عبدالرحمن خان **چاریکارو** ته راورسېد او انگرېزانو چې خپل ځان یې په تنگسیا کې ولید نو د مجبوریت له امله یې د هغه هرکلی وکړ او نوموړي امیر ځان د پاچاپه توگه اعلان کړ. پدې توگه **جنرال رابرتس** کابل پرېښود او امیر عبدالرحمن خان د کابل په گدۍ کښېناست.

### په ټولگي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې پر افغانستان د انگرېزانو د تېري د لاملونو په اړه او دویمه ډله دې د میوند د جگړې د پایلې په اړه خبرې اترې وکړي، وروسته دې د خپلو خبرو لنډیز ټولگیوالو ته وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱- انگرېزانو څه پلمه کړل او په افغانستان یې دویم ځل تېري وکړ؟
۲- د گندمک تړون په کوم کال کې لاسلیک شو او کومې سیمې د افغانستان له خاورې نه بېلې شوې؟
۳- د میوند د جگړې په اړه لنډ معلومات ورکړئ.

### له ټولگي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د گندمک د تړون په اړه د کورنۍ له مشرانو نه معلومات ترلاسه او په ټولگي کې دې بیان کړي.

# د دریم څپرکي موخې

- په افغانستان کې د مرکزي ځواک له ټینګښت سره د زده‌کوونکو پېژندګلوي
- د مشروطیت د غورځنګ له تګلارو سره د زده‌کوونکو پېژندګلوي
- د خپلواکۍ له بیا اخیستلو سره د زده‌کوونکو پېژندګلوي
- د ډموکراسۍ د لسیزې د تګلارو سره د زده‌کوونکو پېژندګلوي.

# د مرکزي واکمنۍ په ټینګښت کې د امیر عبدالرحمن خان ونډه څه وه؟




په تېر لوست کې مو د امیر محمد یعقوب خان او د ګندمک تړون په اړه معلومات تر لاسه کړل. په دې لوست کې به د امیر عبدالرحمن خان د واکمنۍ په اړه معلومات وړاندې شي

په ۱۸۸۰م کال چې په افغانستان کې د انګلیسانو د ماتې ورستی وورځې وې. انګلیسان دې ته اړشول ترڅو **امیر عبدالرحمن خان** ته لیکنې راواستوي. د دغو اړیکو په لړ کې د انګلیسانو له خوا د عبدالرحمن خان سلطنت په رسمیت وپیژندل شو. افغانستان هم د دغو اړیکو د ټینګښت او دوام لپاره یو پلاوی وټاکه. د افغاني پلاوي په یوه وینا کې راغلي چې: افغان ملت له پخوا څخه عبدالرحمن خان د خپل پاچا په توګه ټاکلی و. له دې چې د انګلیس دولت دغه سلطنت په رسمیت وپیژني، مننه.


امیر عبدالرحمن خان

امیر عبدالرحمن خان کله چې د پاچاهي اعلان وکړ د انګریزانو تیریو پر افغانستان باندې ډېرې ستونزې رامنځته کړې وې، **کابل** خپل ارزښت د پلازمېنې په توګه له لاسه ورکړی و، په هېواد کې اداري تشکیلات له منځه تللی و. د مرکز او سیمو ترمنځ اداري او سیاسي اړیکې موجودې نه وې. د پوځ او امنیتي ځواکونو سیستم په هېواد کې له منځه تللی و. اقتصادي وضع ناسمه او دولتي خزانې تشې وې. د انګریزانو پرضد د جنګ له امله د هېواد صنعتي او کرنیزې چارې زیانمنې شوې وې. په داسې حالاتو او شرایطو کې امیر عبدالرحمن خان ځان د دوو دندو په سرته رسولو مسوول ګاڼه.

لومړی د مرکزي ځواکمن او خپلواک دولت جوړول او دویم ټولنیز اصلاحات. امیر عبدالرحمن خان د دغو دوو دندو د سرته رسولو لپاره له هېڅ ډول اغېزناک عمل نه مخ وا نه ړاوه. د دولتي ادارو د جوړښت او بیارغونې د بهیر څارنه یې پخپله کوله. ناضروري اداري یې لغوه کړې چې د تشکیلاتي ګنې ګوڼې لامل شوې وې. دولتي چارواکي یې د ورسپارل

شویو دندو مسوول ګڼل. مامورینو باید له هر ډول اشتباه نه لاس اخیستی وای. د دولت حاکمان د امیر په فرمان پورې تړلي وو چې په حقیقت کې یې د قانون بڼه درلوده. هر ډول ډله ییز او په یوازې توګه مقاومت د هېواد په هره ګوښه کې له منځه یوړل شو. د مرکزي حکومت د احکامو او اوامرو د پلي کولو په لاره کې یې له هیڅ ډول نرمښت څخه کار نه اخیست.

افغانستان پوځي تشکیلاتو ته سخت اړ و. امیر عبدالرحمن خان تر ډېره حده د پوځ په سمبالولو او جوړښت کې کوښښ وکړ. څه د پاسه نوي زره کسیز منظم پوځ یې جوړ کړ. د دغه پوځ په واسطه یې وکولای شول چې یو ځواکمن، غښتلی مرکزي دولت رامنځته او په ټول هېواد کې امنیت ټینګ کړي. استخباراتي اداره د امنیتي پوځونو له یوې سترې او مهمې ادارې څخه ګڼل کېده چې د امیر په واسطه اداره کېدله.

امیر عبدالرحمن خان د پوځي موخو او د مرکزي دولت د غښتلتیا لپاره پیسو ته اړتیا درلوده. د لګښتونو د پوره کولو یوه لاره هم د مالیو زیاتول وو، مالیات یې وضع او زیات کړل او په مستقیمه او نامستقیمه توګه یې تر لاسه کول.

د امیر عبدالرحمن خان له مهمو کارونو څخه یو هم د **کافرستان** د خلکو مسلمانول او په **نورستان** باندې یې د نامه بدلول وو. د لومړي ځل لپاره د اسلام سپېڅلی دین په ۱۸۹۱ زیږدیز کال نورستان ته ورسېد. **غلام حیدرخان** چې د **ننګرهار** والي و، خلکو ته یې وویل چې د دولت موخه دا ده چې له نورستان څخه **بدخشان** ته لاره جوړه کړي. د دغه خبر له خپرولو سره سم د اسلام د مبارک دین د تبلیغ چارې په نورستان کې پیل شوې. د اتو میاشتو په موده کې د اسلام مبارک دین په نورستان کې خپور او د دغې سیمې پخوانی نوم (کافرستان) په (نورستان) واړول شو.

امیر عبدالرحمن خان له اروپایي هېوادونو سره په اړیکو کې پر تزاري دولت باوري نه و او له ایران سره یې په سیاسي اړیکو کې د بېطرفۍ دریځ غوره کړ. په ۱۸۸۸ زیږدیز کال کې د سرحدي کرښو ټاکلو په وخت کې انګلیسانو د **ایران** پلوي وکړه، دغه کار د دې لامل شو چې د افغانستان او ایران ترمنځ اړیکې سړې شي.

د امیر عبدالرحمن خان په بهرني سیاست کې د هغه یوه لویه تېروتنه له انګلیسانو سره د ختیځو او سویلي سرحدي کرښو ټاکل وه.

د دغې دورې د ناخوالو پیښو څخه یوه هم د افغانستان د ختیځ او سویلي پولو ټاکل د **ډیورنډ** کرښه قبلول و.

**مارتیمر ډیورنډ** په ۱۸۹۳ زیږدیز کال د انګریزانو له خوا د یو پلاوي په مشرۍ د **بریتانوي هند** او **افغانستان** تر مینځ د پولو د ټاکلو لپاره ټاکل شوی و. نوموړي د بریتانوي هند او افغانستان تر مینځ پوله په خپله ګټه وټاکله او د سیاسي، پوځي او اقتصادي فشارونو له لارې دغه کرښه پر افغانستان تپل شوه. چې هېڅکله د افغانستان د خلکو له خوا دغه پوله منل شوې نه ده.

### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو وویشل شي، لومړۍ ډله دې په افغانستان کې د دولتي ځواک د غښتلتیا په اړه او دویمه ډله دې د امیر عبدالرحمن خان په دوره کې د افغانستان د سرحدي کرښو ټاکلو په اړه خپل نظریات او وړاندیزونه ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱ – سلطنت ته د امیر عبدالرحمن خان د رسېدو په اړه خپل معلومات وړاندې کړئ.

۲ – امیر عبدالرحمن خان خپله اداره څنګه سمبال کړې وه؟

۳ – د ډیورنډ د کرښې په اړه څه معلومات لرئ؟

### له ټولګي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې له خپلو مشرانو څخه د امیر عبدالرحمن خان د دورې په اړه وپوښتي او خپل معلومات دې ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

# د امير حبيب الله خان د پاچاهۍ په اړه څه پوهېږئ؟



حبيب الله خان

په تېرلوست کې مو د مرکزي واکمنۍ په غښتلتيا کې د امير عبدالرحمن خان رول او د هغه د پايلو په اړه معلومات ترلاسه کړل په دې لوست کې به د امير حبيب الله خان سياسي واکمنۍ تر څېړنې لاندې نيسو.

**امير حبيب الله خان** د واک ترلاسه کولو وروسته اتلس کاله واکمني وکړه. د هغه په وخت کې افغانستان يو غښتلی پوځ درلود او مرکزي حکومت په ټول هېواد باندې واکمني لرله. بشپړه ارامي او امنيت موجود او د دولتي نظام بنسټ اېښودل شوی و. د دربار په اداري تشکيلاتو کې درې ډوله منشيان موجود وو چې د **حضور منشي**، **بهرنی منشي** او **کورنی منشي** نومېدل. د (**دارالعدالت**) په نامه يوه اداره هم موجوده وه. مالي چارې د **مستوفي الممالک** له خوا اداره کېدې او پوځي چارې په خپله امير کنټرولولې.

امير حبيب الله خان د خپلې پاچاهۍ په لومړي پړاو کې په مذهبي څېره کې راښکاره شو. د ښځو بې ځايه تګ راتګ يې په سپېڅلو ځايونو کې منع کړ. د **خرابات** په سيمه کې يې له ښځينه نڅاګرو څخه وغوښتل چې له دې کار څخه لاس واخلي.

د روژې په مبارکه مياشت کې يې بېوزلو خلکو ته روژه ماتی ورکاوه. نوموړي په ۱۹۰۲ زېږديز کال کې د (**سراج الملة والدين**) لقب وګاټه.

امير حبيب الله خان پاچاهۍ ته تر رسېدو وروسته په کورنيو چارو کې په يولړ اصلاحاتو لاس پورې کړ. د مريانو د خرڅولو او اخيستلو منع کولو امر يې خپور کړ او د زندانيانو د دوسيو په څېړلو کار پيل شو. نوموړي لارښوونه وکړه، چې د تعذيب پر ځای دې شرعي مجازات حبس پلي کړل شي.

امير حبيب الله خان د ماهيو له ودانولو سره مينه درلوده، د هغه وخت ډېرې جوړه شوې ماڼۍ د هغه په نامه نومول

شوې دي چې د **سراج رباطونه**، **قلعه السراج** په **لغمان** کې، **سراج العمارة** په **ننګرهار** کې او **سراج المصار** په **جبل السراج** کې نوموړې یادولای شو.

امیر حبیب الله خان په یوه عام مجلس کې داسې ویلي وو: "د دولت پرمختګ د علم له پرمختګ پرته ناشونی دی، زه قصد لرم، چې په هېواد کې ښوونځي جوړ کړم، نو په دې اړه د نظر د خاوندانو وړاندېزونه او نظرېې په لیکلې توګه غواړم". په ۱۹۰۳ زیږدیز کال د **حبیبې** لیسې په بنسټ ایښودلو سره د فرهنګي مسایلو او نوې پوهنې بنسټ هم کېښودل شو. دغې لیسې درې دورې درلودې یعنې **لومړنی، رشدیه او اعدادیه** دورو څخه عبارت دي. د **حربي** ښوونځي بنسټ هم په ۱۹۰۹ زیږدیز کال کې کېښودل شو، چې درې **اعدادیه** او درې **حربي** ټولګي یې لرل. په دغه ښوونځي کې نظري او عملي ښوونې د نصاب یوه برخه ګڼل کېده او د ښوونې چارې یې د **افغاني** او **ترکي** ښوونکو له خوا پرمخ بیول کېدې.

د امیر حبیب الله خان په دوره کې صنعت ته هم پاملرنه وشوه. د **څرمګرۍ** فابریکه جوړه او په کار یې پیل وکړ چې د وسله والو پوځونو د اړتیا وړ توکي یې تیارول. په ۱۹۱۳ زیږدیز کال کې د **وړیو اوبدلو** د کارخانې بنسټ کېښودل شو. د دې کارخانې له تولیداتو څخه د پنځوسو زرو پوځیانو د پوځي جامو اړتیا پوره کېده. **پوځي** روغتون هم د حبیب الله خان په دوره کې په کار پیل وکړ چې تر **ملکي** روغتون کوچنی و. دغه پوځي روغتون د **هندي** ډاکټرانو تر څارنې لاندې خپل کارونه سرته رسول.

امیر حبیب الله خان په ۱۹۱۹ زیږدیز کال د لغمان د **کله ګوش** په سیمه کې په مرموز ډول ووژل شو. د هغه تر مرګ وروسته د هغه ورور **نصرالله خان** سملاسي، په **جلال اباد** کې د پاچاهۍ اعلان وکړ، خو د امیر زوی "**امان الله خان**" چې هغه مهال په کابل کې و د ځینو عالمانو او مشرانو په مرسته په **کابل** کې پر تخت کېناست او د هېواد چارې یې په خپل لاس کې واخیستې.

### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، لومړۍ ډله دې د امیر حبیب الله خان د اداري جوړښت په اړه او دویمه ډله دې د هغه وخت د صنعت په اړه معلومات ورکړي.

### پوښتنې

۱ – د امیر حبیب الله خان د دولتي جوړښت په اړه څه معلومات لرئ؟
۲ – د امیر حبیب الله خان وینا د هېواد د پرمختګ په اړه څه وه؟
۳ – د امیر حبیب الله خان په دوره کې د صنعت په اړه څه معلومات لرئ؟

### له ټولګي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د هغو ودانیو انځورونه راټول کړي چې د امیر حبیب الله خان په دوره کې جوړې شوې دي او بیا دې ټولګي ته له ځانه سره راوړي.

# د افغانستان خلکو څرنګه له انګريزانو څخه خپله خپلواکي ترلاسه کړه؟



په تېر لوست کې مو د امير حبيب الله خان د پاچاهی په اړه او د لغمان د کله ګوش په سيمه کې په نامعلوم ډول د هغه دوژلو په اړه مو معلومات ترلاسه کړل. په دې لوست کې به د خپلواکی په لاره کې د افغانانو بریاليتوب تر څېړنې لاندې ونيسو.

شهزاده **امان الله خان** د خلکو د ملاتړ په ترلاسه کولو سره وکولای شو چې په ۱۹۱۹ زیږدیز کال کې چې له ۱۲۹۸ هجري لمريز کال سره سمون خوري خپل سلطنت اعلان کړي.

امان الله خان د افغانستان خلک د خپلو اعلاميې په وسيله واک ته له خپلو رسېدلو نه خبر کړل. د دغې اعلاميې په یوه برخه کې راغلي دي: "کله چې د افغانستان لوی ولس د پاچاهی تاج زما پر سر کېښود نو ما له ځانه سره هوډ وکړ چې د افغانستان دولت بايد لکه د نورو دولتونو په څېر په دننه او بهرکې خپلواک او غښتلی وي، د دې خاورې اوسېدونکي له هر ډول يرغل څخه په امن او د قانون او مقرراتو پابند اوسي. زموږ هېواد او وګړي يې د نړۍ د نورو وګړو ترمنځ خپل ځای بيا ومومي. ای غيرتمند او هوښيار ولسه! د خپل دين، دولت او ولس په ساتلو کې ويښ اوسئ او د هېواد په ساتنه کې هڅه وکړئ".

امير امان الله خان په ۱۹۱۹ زیږدیز کال د عدالت د رامنځ ته کولو په شعار ورکولو سره د خلکو ملاتړ ترلاسه کړ. د لسو شپواو ورځو په موده کې ټولو ولايتونو له پاچا سره تعهد وکړ او د خپلواکی غوښتنې نعرې په ټول افغانستان کې پورته شوې.

د امان الله خان ادارې د انګلیسي پوځونو د احتمالي خطرونو د مخنیوي لپاره خپل پوځونه په سرحدي سیمو کې ځای پر ځای کړل. سره له دې چې د قومندانۍ او ادارې لوی مرکز په هېواد کې څرنګه چې ورته اړتیا وه شتون نه درلود او استعماري ځواکونو له مالي او تخنیکي اړخه هم برلاسي لرله، په جنګي موضوعاتو کې یې هم سره سمون نه درلود.

د افغانستان خلک د خپلواکۍ تر لاسه کولو لپاره په درې ګونو جبهو کې د **سردار اعتماد الدوله سردار عبدالقدوس خان** په مشرۍ د **قندهار، جنرال صالح محمد خان**، د **ننګرهار** او **سپه سالار سردار محمد نادر خان د پکتیا** په ولایت کې خلک سره راټول او یو ځای کړل او د کلکو جګړو په ترڅ کې پر انګریزانو یرغل وکړ، انګریزان د افغانستان د خپلواکۍ تصدیق کولو ته اړ شول. د متارکې د اعلامولو وروسته **علی احمد خان** چې د کورنیو چارو وزیر و، په ۱۹۱۹ زیږدیز کال کې **هند** ته ولاړ. او په **راولپینډۍ** کې انګلیسي پلاوي له مشر **هملتن ګرانټ** سره خبرې اترې پیل کړې او یو تړون لاسلیک کړ چې دهغه په اساس د افغانستان خپلواکي د انګریزانو له خوا په رسمیت و پېژندل شو.

امان الله خان واک ته له رسېدو سره سم په یو شمېر اصلاحاتو لاس پورې کړ. دغو اصلاحاتو دوه پړاوونه درلودل، لومړی پړاو یې د ۱۹۱۹ او ۱۹۲٤ زیږدیز کلونو ترمنځ او دویم پړاو یې تر ۱۹۲۸ ز کال پورې اوږد شو.



### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، لومړۍ ډله دې د خپلواکۍ د کورنیو او بهرنیو لاملونو او دویمه ډله دې د امان الله خان د کورنیو او بهرنیو تګلارو په اړه معلومات ورکړي.



### پوښتنې

۱- امان الله خان څنګه واک ته ورسېد، بیان یې کړئ؟
۲- د امان الله خان د اعلامیې د جزئیاتو په اړه خپل معلومات ولیکئ؟
۳- د امان الله خان د پاچاهۍ په دوره کې په څو پړاوونو کې اصلاحات ترسره شول؟



### له ټولګي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې له مور، پلار او لویانو څخه د هېواد د خپلواکۍ په اړه معلومات ترلاسه او بیا دې ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

# د امان الله خان د مسافرتونو لاس ته راوړنې څه وې؟



په تېر لوست کې مو د انگلیسي یرغل پر وړاندې د هېواد خلکو برياوې چې په پای کې د خپلواکۍ او اصلاحاتو د رامنځته کېدو لامل شوې ولوستلې، په دې لوست کې به د امان الله خان د سفرونو برياوې وڅېړو.

د نړۍ **اسیایي** او **اروپايي** هېوادونو ته د **امان الله خان** سفرونو اته میاشتې وخت ونیوه. په دې وخت کې پاچا **۳۸** کلن و. پاچا د **کندهار** او **چمن** له لارې **بریتانوي هند** ته ولاړ او تود هرکلی یې وشو. وروسته بیا امیر امان الله خان هلته خپله وینا وکړه چې د هغې وینا په ترڅ کې د استعماري ضد احساس ښکاره و او خلک یې د یووالي ارزښت ته رابلل. امیر امان الله خان د خپلواکۍ په اړه داسې ویل: «**خپلواکي نه ورکول کیږي، بلکې اخیستل کیږي**». امیر امان الله خان **مصر** ته هم سفر وکړ، **د قاهرې** ښاریانو یې هرکلی وکړ. د مصر سړکونه، علمي او تاریخي اداري یې ولیدې، له مصر څخه **ایټالیا** ته ولاړ او هلته یې د ایټالوي هوابازانو سره خبرې اترې وکړې.

امیر امان الله خان په **فرانسه** کې د لرغونپوهانو او ختیځپوهانو له انجمن سره ولیدل او یو فرهنگي تړون یې هم لاسلیک کړ، وروسته **المان** ته ولاړ. په المان کې د صنایعو خاوندانو د امان الله خان هرکلی وکړ. د هېواد د خپلواکۍ لسمه کلیزه یې په المان کې ونمانځله. په آلمان کې د تم کېدو پر مهال یې شپږ میلیونه مارکه د پور په ډول ترلاسه کړل او هغه یې د تخنیکي کمپنیو د سامان الاتو په اخیستلو او دجنگي تجهیزاتو په پېرودلو ولگول.

امیر امان الله خان له ألمان څخه وروسته انګلستان ته سفر کړ چې انګلیسانو هم د امان الله خان تور هرکلی وکړ، امان الله خان د انګلیسانو علمي مرکزونه ولیدل، دغو ادارو امان الله خان ته د حقوقود افتخاري ډاکټرۍ علمي لقب ورکړ.وروسته بیا نوموړي او د شوروي اتحاد مرکز مسکو ته ولاړ او هلته چې دهغه هیواد پوځي او صنعتي ښوونځي وکتل او امان الله خان ته له شوروي اتحاد څخه وروسته ترکیې ته سفر وکړ. هلته نوموړي ته د **مصطفی کمال اتاترک** له خوا د «**ختیځو ولسونو د خپلواکۍ د مشر**» لقب ورکړل شو.امان الله خان له ترکیې څخه ایران ته لاړ، د نوموړي دا سفر د دواړو هېوادونو د دوستۍ د ټینګېدو لامل وګرځېد.

افغانستان ته د راتګ پر مهال امان الله خان وویل: «زموږ هېواد ډېرې ارزښتناکې شتمنۍ لري او هغه څه چې نه لري هغه یوازې پوهه ده چې باید ترلاسه یې کړي».

د امان الله خان د سفرونود برياوو له جملې څخه د نړۍ له نورو هېوادونو سره د اړیکو ټینګول، د دفاعي مهارتونو د کیفیت لوړوالی، د نویو وسلو پېرودنه، د صنایعو د پرمختګ د لارو چارو برابرول، له ټکنالوژۍ څخه په سمه توګه ګټه اخیستنه او د امان الله خان د نړیوال اعتبار ډېروالی یادولای شو.

امان الله خان، له سفر وروسته خپلو اصلاحاتو ته دوام ورکړ، ولي دغو اصلاحاتو د یوشمېر کورنیو او بهرنیو کړیو له ګټو سره سمون نه درلود. همداوه چې په عملي ډګر کې د هېواد په ګوټ،ګوټ کې د معینو بهرنیو کړیو په لمسون خلك د اماني اصلاحاتو پر ضد راپاڅول. ځینې ډلې سره یو شوې او په هېوادکې یې د اماني اصلاحاتو مخه ونیوله چې په پایله کې د هېواد په برخه لیک کې اړ او دوړ مسلط شول.

### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، لومړۍ ډله دې خپلواکۍ ته د رسېدو پر لاملونو او دویمه ډله دې د امان الله خان د اصلاحي تګلارو په اړه خبرې وکړي.

### پوښتنې

۱- په برتانیوی هند کې د امان الله خان دوینا محتوا څه وه؟
۲- په فرانسه کې فرهنګي تړون د چا له خوا لاسلیك شو؟
۳-پاچا امان الله خان ته د کوم مشر له خوا د "ختیځو ولسونو د خپلواکۍ د مشر" لقب ورکړ شو؟

### له ټولګي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د امان الله خان د دورې د فرهنګي مسایلو او برياوو په اړه له خپلو لویانو نه پوښتنې وکړي او بیا دې خپل معلومات نورو زده‌کوونکو ته وړاندې کړي.

# حبيب الله کلکانی څرنگه واک ته ورسيد؟



په تېر لوست کې مو امان الله خان ته د نړۍ د هېوادونو د مشرانو د هرکلي په اړه ولوستل، په دې لوست کې به د حبيب الله کلکاني ته د رسېدلو څرنگوالي ولولو.

په عمومي توگه تاريخ پوهان د مخالفتونو لاملونه د ټولنې بيرته والی او د سياسي او فرهنگي شعور ټيټه گڼي، د اماني ټولنيز او اقتصادي اصلاحاتو بهير چې پر ديني عالمانو باندې د مقررې بنديزونه، د کاليو بدلون، او داسې نور د خلکو د غوسې لامل وگرځېدل.

حبيب الله کلکاني چې د **سقاوزوی** په نامه مشهور دی، د يو شمېر کسانو له خوا يې ملاتړ کېده او ده ته يې د (**خادم دين رسول الله**) لقب ورکړ. همدارنگه يو شمېر کسانو چې له اماني اصلاحاتو سره يې مخالفت درلود له حبيب الله کلکاني څخه يې ملاتړ وکړ.

حبيب الله کلکانی په ۱۹۲۹ ز (۱۳۰۷ هـ.ش کال) کابل ښار ته راننوت او د نوي جوړ شوي حکومت د مشروعيت لپاره يې اعلاميه خپره کړه چې د اماني دوري د اصلاحاتو پر ضد و.

د هغه پر او ځانگړتياوې د امنيت اخلال، د دولتي شتمنيو لوټول او د تجارت وروسته پاتې کېدل وو.

په هېواد کې اړدوړ (۹) میاشتې دوام وکړ او هېواد یې د جدي ګواښ سره مخامخ کړ، په پای کې د حبیب الله کلکاني حکومت د ماتي سره مخامخ شو او د **محمد نادر خان** د سلطنت لپاره لاره هواره شوه.



### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د خوځښتونو د پیل او دویمه ډله دې په دې اړه معلومات ورکړي چې دغه بغاوتونه او خوځښتونه د کومو ګروپونو په ګټه پای ته ورسېدل.



### پوښتنې

۱- د لویې جرګې پرېکړې څرنګه او د دې موضوع په اړه د استازو چلند څه و؟

۲- د دغه پړاو پاڅونونه د کومو ډلو په ګټه وو؟



### له ټولګي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د دیني عالمانو او خپلو مشرانوڅخه د حبیب الله کلکاني او د هغه په دوره کې د ټولنیزو ډلو د رول په اړه معلومات ترلاسه کړي او بیا دې له نورو ټولګیوالو سره شریک کړي.

# آیا پوهیږئ چې محمد نادر شاه څرنګه واک ته ورسېد؟



محمد نادر شاه

په تېر لوست کې مو د هغو عواملو په اړه معلومات ترلاسه کړل چې د حبیب الله کلکاني واک ته د رسیدلو لامل شول، په دې لوست کې به د محمد نادرخان د واکمنی څرنګوالی ولولو.

**محمد نادرخان** د **امان الله خان** په وخت کې د سپه سالارۍ دنده درلوده. د افغانستان د خپلواکۍ په جګړه کې یې د سوېلي سیمو د اداري دنده په غاړه درلوده، چې انګلیسي پوځونو ته یې سخته ماتې ورکړه. له همدې برې وروسته محمدنادر خان د افغانانو په منځ کې د شهرت څښتن شو. د اماني دولت تر نسکورېدو وروسته په هېواد کې اړو دوړ پیل شو. محمد نادر خان چې د ښه شهرت خـاوند و، د امان الله خان پاچا په نامه یې خلک د واک د لاسته راوړلو لپاره په ځان راټول کړل او **پکتیا** یې د سیاسي او پوځي چارو په مرکز بدله کړه او له بېلا بېلو قبیلو او قومونو څخه یې دولس زره کسه یوموټې او متحد کړل.

محمد نادر خان په کال ۱۹۲۹ کې د **کابل** په لور حرکت وکړ او کابل یې د مخالفینو څخه وژغوره.

محمد نادر خان د هماغه وخت د مخورو کسانو د خپلولو سیاست خپل کړ. د دغو مخورو خلکو د خپلولو نه یې موخه د خپل منځي ګډوډیو له منځه وړل وو چې د نهه میاشتنیو کړکېچونو او ګډوډیو پر مهال په هېواد کې په سیمه ییزو څواکونو اوښتي وو.

محمد نادرخان د هېواد اداري چارې له خپلو وروڼو سره وویشلې او **سردار محمد هاشم خان** يې د لومړي وزير په توگه وټاکه. د نوموړي د صدارت پر مهال یولړ تدریجي بدلونونه رامنځته شول. د دغې دورې ځانگړتیاوې د سیاسي واک ټینگښت په کورنۍ کې و.

د محمد نادر خان د پاچاهۍ په موده کې چې څلور کاله وه، د هېواد امنیتي حالات مخ په ښه کېدو شول او د مرکزي دولت واک هېواد ته په تدریجي توگه پراخه شو. د هېواد په اداري - دولتي جوړښت کې یوځل بیا هڅه وشوه چې د اماني گوند د پلویانو ملاتړ ترلاسه شي چې له شته حالاتوڅخه خوښ نه وو. اصلاحاتو دوام وموند خو لړۍ يې په پڅه توگه پرمخ تلله.

محمد نادر خان په **۱۹۳۳** زیږدیز کال کې د پوهنې د جشن د نمانځلو پر مهال د **نجات** د عالي لیسې د یوه زده‌کوونکي له خوا چې عبدالخالق نومېده، ووژل شو.

**په ټولگي کې فعالیت**

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، لومړۍ ډله دې واک ته د محمدنادرخان له رسېدو څخه مخکې د هغه مهمو کارونو او دویمه ډله دې د هغې دورې د مهمو ځانگړتیاوو په اړه معلومات ورکړي.

**پوښتنې**

۱- محمد نادرخان د خپلواکۍ په جگړه کې کومه دنده درلوده؟
۲- محمد نادرشاه ولې د مخورو خلکو د خپلولو هڅه وکړه؟
۳- محمد نادر شاه څنگه ووژل شو؟

**له ټولگي نه د باندې فعالیت**

زده‌کوونکي دې د محمد نادرخان د کورنۍ په اړه له خپلو لویانو څخه وپوښتي او خپل معلومات دې په ټولگي کې بیان کړي.

# آيا پوهيږئ چې محمد ظاهر شاه څلوېښت کاله پاچاهي وکړه؟



محمدظاهرشاه

په تېر لوست کې مو واك ته د محمد نادر شاه د رسېدلو د څرنګوالي په اړه ولوستل، په دې لوست کې به د محمد ظاهر شاه د پاچاهی دوره وڅېړو.

د **محمد نادر شاه** د مړينې وروسته د هغه زوی **محمد ظاهر** چې عمر يې تر ۱۹ کلو ډېر نه و، د افغانستان د پاچا په توګه اعلان شو. د ده د پاچاهی په پيل کې د هېواد ټولې دولتي چارې د **محمد هاشم خان** او د ده د ورونو په لاس کې وې.

## د سردار محمد هاشم خان د صدارت دوره

سردار محمد هاشم خان د محمد نادر شاه په پاچاهی کې د لومړي وزير په توګه وټاکل شو او د محمد نادرخان تر مړينې وروسته يې هم همدغه دنده لرله.

نوموړی د اداري سيستم د نوي کولو په هيله هڅه وکړه چې ملکي جوړښت يوځل بيا اصلاح کړي. اداري جوړښت يې په نائب الحکومه او اعلی حکومتونو باندې ووېشه او خپل اعتباري خلك يې په ادارو او ولايتونو کې په دندو وګومارل.

د محمد هاشم خان د صدارت په دوره کې د افغانستان معارف ته پاملرنه وشوه. که څه هم دغه کارونه د څومره والي او څرنګوالي له پلوه د پام وړ نه و، خو سره له دې هم کولای شو د هغه د خدمتونو له ډلې نه د افغانستان د ښوونې د وزارت په چوکاټ کې د **طب**، **حقوقو** او **ادبياتو** د پوهنځيو او ځينو ښوونځيو بنسټ ايښودنې ته نغوته (اشاره) وکړو.

د محمد هاشم خان د صدارت په دوره کې د هېواد اقتصادي حالات سم نه شول او خلکو په يو کړکېچن او بد حالت کې شپې ورځې تېرولې. د هېواد په سلو کې نوي سلنه وګړي بزګران وو چې د کرنې او څاروي روزنې په چارو بوخت وو او د هغوی کاري وسايل ټول هماغه پخواني وسايل او الات وو.

## د شاه محمود خان د صدارت دوره


لومړی وزیر شاه محمود خان

تر **دوهمې نړیوالې جګړې** وروسته محمد هاشم خان د صدارت دنده **شاه محمود خان** ته وسپارله. نوموړی د دموکراسۍ د پلار په نامه وپېژندل شو. هغه په کورنیو چارو کې د ټولنیزو، اقتصادي او سیاسي بدلونونو په رامنځ ته کولو سره په بهرني سیاست کې هم بدلون را منځته کړ.

د سردار شاه محمود خان حکومت د نړۍ د هېوادونو په ځانګړې توګه د **امریکې** له **متحده ایالاتو، هند، مصر** او نورو هېوادونو سره اړیکې ټینګې کړې. د (**ملګرو ملتونو د تخنیکي مرستو او اړیکو اداره**) په نامه د ملګرو ملتونو یوه اداره پرانیستل شوه چې د ملګرو ملتونو د کارپوهانو د پلانونو د طرحې لپاره یې مناسبې کړنلارې په لاس کې ونیول شوې.

د شاه محمود د صدارت پر مهال د ازادو ټولټاکنو د ترسره کېدو، د مطبوعاتو خپلواکۍ، د شوراګانو او سیاسي ګوندونو د جوړونې لپاره لازم سیاسي اقدامات پیل شول.

په ۱۹۴۹ زیږدیز کال ټولټاکنې ترسره شوې چې په پایله کې یې د خلکو لخوا یو شمېر سیاسي څېرو د هېواد پارلمان ته لاره وموندله.

دغه مهال ولسي جرګې د حکومت کړنې څارلې. د خلکو د حقوقو او خپلواکیو خوندي کول او د نویو قوانینو بشپړول د وکیلانو له بریاوو څخه شمېرل کېده. د کارونو د ښه پرمختګ لپاره په ځینو ادارو کې، اصولنامې (قانون) جوړې شوې، د ساري په توګه د **کار** او **کارګر** لپاره د صنعتي مؤسسو اصولنامه یادولای شو چې د **عبدالمجید زابلي** په نوښت جوړه او عملي شوه.

## د محمد داودخان د صدارت دوره


لومړی وزیر محمد داود

**سردار محمد داود**، په اداري چارو کې د پوهو او لوړو زده کړو لرونکو کسان وګمارل. د ۱۹۵۵ زیږدیز کال چې د ۱۳۳۴ لمریز کال سره سمون لري تر لویې جرګې وروسته د محافظه کارو کړیو رول کمزوری شو. په دې وخت کې افغانستان د نړۍ د خپلواکو هېوادونو په منځ کې ځانګړی ځای ترلاسه کړ. محمد داود خان د خپل صدارت په وخت کې د ناپېیلو هېوادونو ملا تړ وکړ او افغانستان د دغه غورځنګ د بنسټ ایښودونکو د یو غړي په توګه وپېژندل شو. محمد داودخان د افغانستان د صدراعظم په توګه لکه **جمال عبدالناصر، جواهر لعل نهرو** او **عبدالرحیم سکارنو** په دغه غورځنګ کې ځانګړی مقام درلود. په دې پړاو کې افغانستان د ملګرو ملتونو په سازمان کې هم پرمختګ وکړ. د هغو کړنو نه یو هم په بهرني سیاست د پوهو کسانو ملاتړ د دولت څخه د **پاکستان** په وړاندې د هغه پالیسۍ څارل وو چې د **ډیورنډ** د کرښې د تاریخي مسالې په حل باندې یې ټینګار کاوه. د دغې دورې د اغېزناکو کارونو څخه یو هم د لومړي او دویم پنځه کلن پلان عملي کول وو.

د محمد داود د صدارت په دوره کې اقتصادي پرمختیایي پلانونه طرح او عملي شول. ډېر شمېر لویې لارې جوړې شوې او هوایي کرښې او ډګرونو ډېروالی پیدا کړ. په فرهنګي او ټولنیز ډول هم بدلونونه رامنځته شول. په

ټولنيزو چارو کې د ښځو برخه اخيستنه معمول شوه چې پر ټولنيزو او توليدي چارو يې لوی اغېز وکړ.

محمد داود خان د نړۍ د نورو هېوادونو سره د سوداګريزو اړيکو ټينګولو او دوام هڅه وکړه. په ۱۳۴۰ هجري لمريز کال کې د هېواد د خپلواکۍ له جشن نمانځلو سره جوخت په کابل کې يو نندارتون پرانيستل شو، په دې ننداړتون کې د نړۍ ځلوېښتو هېوادونو سوداګريز او توليدي توکي ننداري ته وړاندې شول.

## د ډاکټر محمد يوسف د صدارت دوره

د هېواد اساسي قانون تر تصويب وروسته په ۱۳۴۳ هجري لمريز (۱۹۶۵ زيږديز) کال کې د صدارت څوکۍ د کانو او صنايعو د پخواني وزير **ډاکټر محمد يوسف** د نوماند کېدو لپاره لاره هواره کړه او حکومت د اساسي قانون پر بنسټ د سلطنتي کورنۍ نه بېل کړای شو.

له ټولنيز او سياسي اړخه هم په هېواد کې ژور بدلونونه رامنځته شول او د اساسي قانون پر بنسټ د بيان د ازادۍ لپاره لاره هواره شوه. د سياسي ګوندونو قانون اعلان شو، خو پلی نه شو. له دې ټولو سره سره يوشمېر ګوندونو د کيڼ او ښي افکارو په درلودو سره پټ او ښکاره فعاليتونه کول. په دغو سياسي خوځښتونو کې د کابل او ولاياتو ښوونځيو او پوهنتونونو د پام وړ ونډه درلوده. ملي شورا په خپلو جلسو کې پر مهمو ټولنيزو او فرهنګي مسالو بحث کاوه. قوانين يې د ملي ګټو او نړيوالو حالاتو په نظر کې نيولو سره تصويبول. کار په ورځ کې له دولس ساعتو څخه اتو ساعتو ته راټيټ کړای شو. د ښځو حقوقو ته پاملرنه وشوه او د هېواد اتباعو لپاره د کار حق تسجيل شو.

د ډاکتر يوسف د صدارت تر ختمېدو وروسته حکومتونه يو په بل پسې رامنځته شول چې هر حکومت بېل پروګراومونه تر سره کول. د **محمد هاشم ميوندوال**، **نوراحمد اعتمادي**، **ډاکټر عبدالظاهر** او **محمد موسی شفيق** په دورو کې د رغاونو، پرمختيايي، فرهنګي او ټولنيزې پروژې پلي کړای شوې.

د ۱۳۵۲ هجري لمريز کال د چنګاښ په مياشت چې د ۱۹۷۳ زيږديز له جولای سره سمون خوري د يوې سپينې کودتا له لارې، په هېواد کې شاهي نظام نسکور او پر ځای يې په افغانستان کې د سردار محمد داودخان په مشرۍ لومړنی جمهوري حکومت جوړ شو.

### په ټولګي کې فعاليت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، لومړۍ ډله دې د محمد ظاهر شاه د سلطنت د وروستيو لسو کلونو په کړنو او دويمه ډله دې د سلطنت په لومړنيو کلونو کې د حکومت فعاليت په ګوته کړي.

### پوښتنې

۱ – محمد ظاهر څرنګه واک ته ورسېد؟
۲ – محمد هاشم خان ولې د ملکي جوړښت په سمون لاس پورې کړ؟
۳ – شاه محمود خان ته د صدارت پر مهال کوم لقب ورکړ شو؟
٤ – د ناپېيلو غورځنګ کې کومو مهمو شخصيتونو ونډه در لوده نومونه يې واخلئ؟

### له ټولګي نه د باندې فعاليت

زده‌کوونکي دې د خپلو مشرانو څخه د ډاکټر محمد يوسف د صدارت په دوره کې د ډموکراسی په اړه وپوښتي او خپل معلومات دې په ټولګي کې ووايي.

# څلورم څپرکی

دګاونډيو هېوادونو معاصر تاريخ

## د څلورم څپرکي موخې

- دګاونډيو هيوادونو د جغرافيايي موقعيت سره د زده‌کوونکو پېژندګلوي
- دګاونډيو هېوادونو د کلتوري ارزښتونو سره د زده‌کوونکو پېژندګلوي
- دګاونډيو هيوادونو د معاصر سياسي بدلونونو سره د زده‌کوونکو پېژندګلوي.

## د چین یا د نړۍ تر ټولو زیات نفوس لرونکي هېواد په اړه څه معلومات لرئ؟




لکه څنگه چې پوهېږئ زموږ یوگاونډی هېواد چین دی. مخکې ټولگي مو د لومړنیو، منځنیو او نوو پېړیو په تاریخ کې له چین سره پېژندگلوي پیدا کړه. په دې لوست کې به د دې هېواد معاصر تاریخ وڅېړو.

لکه څنگه چې په نقشه کې وینئ، چین په شمالي نیمه کره کې د **اسیا** د وچې په ختیځه برخه او د **ارام سمندرگي** په لوېدیځ ساحل کې پروت دی او په نړۍ کې دریم لوی هېواد دی. د خاورې پراخوالی یې تر نهو میلیونو کیلومټرو مربعو څخه زیات دی. د وگړو شمېر یې د ۲۰۰۶ زکال د سرشمېرنې له مخې یو میلیارد او درې سوه میلیونو کسو ته رسېدلی و چې د نړۍ ۲۲ په سلو کې نفوس جوړوي. په دې شمېر کې د **هانگ کانگ** او **تایوان** اوسېدونکي شامل نه دي، د چین هېواد ٥٦ ملي اقلیاتونو وکړي لري چې د چین ۸ په سلو کې وگړي تشکیلوي. پاتې ۹۲ په سلو کې د **خان** (**هان**) نژاد دی چې له پېړو پېړیو راهیسې په دې هېواد کې استوگن دي.

په معاصرو پېړیو کې د **منچو** دولت د **انگلیس** سره سوداگرۍ لرړه او تر څېړنې لاندې ونیوله او سوداگریزو مقرراتو د نوي کولو غوښتونکي وو. انگلیسانو هڅه کوله چې د نړۍ سره د **هندوستان** له لارې خپلې سوداگرۍ ته پراخوالی ورکړي. نو له همدې امله د انگلیس سوداگرۍ د چین سره په همدغو لاملونو ولاړه وه او اساسي موخه یې د تریاکو سوداگري وه. همدارنگه سوداگریزو اړیکو د چین لپاره ښې پایلې نه درلودې او په ۱۸٤۱- ۱۸٦۰ز د تریاکو د جگړې لامل وگرځېد.

**ډاکټر سون یات سن**: چې د نوي (ماډرن) چین د پلار په نامه مشهور دی، د چین لومړی ولسمشر و او د **گومین تانگ** د گوند مشري یې په غاړه وه، هغه وکولای شو چې د منچو د رژیم وروستۍ جرړې وباسي او په چین کې جمهوري نظام رامنځته کړي. نوموړي د چین وگړي په پنځو نژادي ډلو ووېشل:

۱- **خان**  ۲- **منچو**  ۳- **مغولي**  ۴- **تبتي**  ۵- **خویي**

د چین هېواد پایتخت د **پکن** ښار (**بیجینگ**) دی چې تاریخ یې لرغونو زمانو ته رسېږي او ۳۰۰۰ کلن لرغونی تاریخ لري.

دغه ښار ۱۰۰۰ کاله پخوا جوړ شوی دی او اوه پېړۍ مخکې، **قوبلاي خان** د پکن ښار د خپلې دایمي پلازمېنې په توګه وټاکه او د ۱۹۲۸- ۱۹۴۹ زیږدیز کلونو پرته چې ګومین ټانګ خپل پلازمېنه نن بیجېنګ ته انتقال کړ، تراوسه د هېواد سیاسی مرکز دی.


مائو

## مائو او د ۱۹۴۹ کال پاڅون

د ۱۹۴۸ زیږدیز کال په وروستیو کې د کمونستي ګوند ځواکونه د چین په شمال او شمال ختیځو سیمو باندې واکمن شول. د ۱۹۴۹زیږدیز کال د جون په میاشت کې د پکن ښار پرته له کوم مقاومته ونیول شو او د کمونست ګوند د ځواکونو په کنټرول کې راغی. د همدې کال د اپریل او نوامبر د میاشتو ترمنځ د چین ډېر ښارونه پرته له وینو توېېدو او مقاومته د کمونستانو تر واک لاندې راغلل. **چیانکایچک** له خپلو ځواکونو سره ټایوان ته وتښتېد. د پکن له نیولو او د چیانکایچک د ځواکونوله ماتې وروسته کمونستي ګوند په بشپړه توګه بریالی شو مائو په ۱۹۴۹ کال زیږدیز د اکتوبر میاشتې په لومړۍ نېټه د پکن ښار د **اسماني سولې** په سیمه کې د چین د خلکو جمهوري دولت اعلان کړ. د چین په هېواد کې د **کنفوسیزم**، **تائویزم** او **بودیزم** پر مذهبونو سربېره د نورو ادیانو پیروان هم استوګن دي. ډېر شمېر خلک د یو دین پیروان نه دي، ترڅو هغه دین په دې هېواد کې رسمي بڼه پیدا کړي. تر ۱۹۹۰ زیږدیز کال وروسته د مذهبي مقدساتو او شعائرو د نمانځلو لپاره اړینې اسانتیاوې برابرې او تدابیر ونیول شول. د بیلابیلو مذاهبو پیروانو ته اجازه ورکړای شوه چې خپل مذهبي مراسم پرته له دې چې نورو ادیانو ته ضرر ورسوي، ترسره کړي. په اوس وخت کې د چین په هېواد کې ۴۷ مذ هبي موسسې لکه د بودیزم د زده کړو مرکز، اسلامي الهیات، د پروتستانت کلیسا ښوونیز مرکز، کاتولیک او نورې شته او څه د پاسه دوه سوه زره مذهبي کارپوهان له بېلابېلو خپرونو سره په کار بوخت دي.

چینایي ژبه د نورو ټولو ژبو برعکس د الفبا توري نه لري، بلکې د معنی او مفاهیمو یوه ټولګه ده. نن ورځ چینایي ژبه په څو ټولنیزو لهجو وېشل شوې ده، لکه: **پکني، کانتوني، شانګهای**. د **ماندارین** ژبه د هېواد د رسمي ژبې په توګه پېژندل شوې ده. د چین په هېواد کې د ۱۹۴۸ کال را په دې خوا څلور ځلې اساسي قانون بدلون موندلی او د وروستي ځل لپاره په کال ۱۹۹۹ زیږدیز کې د چین اساسي قانون په ۴ څپرکو او ۱۳۸ مادو کې د چین د ملي کنګرې له خوا تایید او تصویب شو.

### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوه ډلو ووېشل شي، لومړۍ ډله دې د چین د موقعیت او پلازمېنې او دویمه ډله دې د چین د مذهبونو او مروجو ژبو په اړه خپل معلومات ټولګیوالو ته وړاندې کړي.

### پوښتنې

۱- چین د نفوس او مساحت له مخې په نړۍ کې څویم مقام لري؟
۲- د چین د جمهوري دولت لیک څه ډول دی؟
۳- په چین کې رسمي ژبه په کوم نوم یادېږي؟
٤- د چین هېواد معمول او مشهور مذهبونه کوم دي؟

### له ټولګي څخه بهر فعالیت

زده‌کوونکي دې د چین د تجارت او صنعت په اړه معلومات تر لاسه او بیا دې نورو زده‌کوونکو ته وړاندې کړي.

# آیا د پاکستان له هېواد او تاریخ سره اشنايي لرئ




لکه څنګه چې پوهېږئ د پاکستان اسلامي جمهوري دولت یو له هغه هېوادونو څخه دی چې زموږ له هېواد سره ګډه پوله لري. په دې لوست کې به د پاکستان تاریخ سره په لنډ ډول آشنا شئ.

**پاکستان** د اسیا په سوېل کې پروت دی. پلازمینه یې د **اسلام اباد** ښار دی. دغه هېواد په سوېلي برخه کې د **عربو** له سمندرګي سره زر کیلومتره سمندري پوله لري. د دې هېواد سیاسي جوړښت **فدرالي جمهوري** دی او له څلورو ایالتونو (**پنجاب، سند، بلوچستان**) او **پښتونخوا** څخه جوړ شوی دی. د دې هېواد رسمي دین **اسلام**، رسمي ژبه یې **اردو** او د پیسو واحد یې **پاکستانی روپۍ** ده. د نفوس له پلوه د نړۍ په هیوادونو کې اتمه درجه لري. نفوس یې د ۲۰۰٦ زېږدیز کال د سرشمیرنې له مخې څه د پاسه یو سلو پنځه شپېته میلیونوکسو ته رسېږي.


محمد علی جناح

پاکستان یو نوی تشکیل شوی هېواد دی چې نږدې څه دپاسه نیمه پېړۍ عمر لري. کله چې دویمه نړیواله جګړه پای ته ورسېده، **محمد علی جناح** د پاکستان د خپلواکۍ لپاره ډېرې هڅې وکړې او

د **بریتانیا** دولت هم د هند د نیمې وچې وېش سره موافقه درلوده، نو د هند لویه وچه یې په دوو هېوادونو (**هند او پاکستان**) ووېشله.

د ۱۹٤۷ زېږدیز کال د اگست په میاشت کې هند او پاکستان دواړو خپله خپلواکي ترلاسه کړه. محمدعلي جناح په دې نه و بریالی شوی چې ترخپلواکۍ وروسته **مسلم لیگ** د یو فعال او گټور سیاسي گوند په توگه ورو‌زي، له همدې امله حالت ورځ په ورځ کړکېچن شو.

سیاستوالو نه یوازې د خپلو شخصي گټو او واک ته د رسېدو لپاره فعالیت کاوه، بلکې د هېواد د ختیځو او لوېدیځو سیمه ییزو ډلگیو خپلمنځې ډله ییزې سیالۍ او اختلافونه د پاکستان د دولت د کمزورۍ یو اساسي لامل شو. د کشمیر پر سر اختلافات لا د حالاتو د خړ پړتیا لامل وگرځېدل او اقتصادي حالت نور هم کړکېچن او خراب شو.


پاچا خان (خان عبدالغفار خان )

خان عبدالغفار خان یو له هغو کسانو څخه و چې د **نه تاوتریخوالي د خوځښت** بنسټ یې کېښود او هم یوه پېژندل شوې سیاسي څېره او د هند د نیمې وچې یو ملي اتل و چې د هند د خپلواکۍ په لاره کې د ښکېلاگرو د تېري پر وړاندې مقاومت وکړ او یو مهمه او حیاتي دنده یې ترسره کړه. نوموړي د خپلې زمانې د نورو مشرانو لکه مهاتما گاندي او محمد علي جناح په څېر د خپلو خلکو د ویښېدو او د خلکو په یو موټي کولو، د خپلواکۍ گټلو په لاره کې فعاله ونډه درلوده. او خپل ملي او تاریخي مسوولیت ترسره کړ.

## د ختیځ پاکستان بېلتون

**مجیب الرحمن** د **بنگال** د **عوامي لیگ** مشر په ۱۹٦۸ زېږدیز کال د اوړي په موسم کې له ۳۵ نورو بنگالیو سره یوځای د ده په مشرۍ د ختیځ پاکستان په بېلولو تورن شو. **یحیی خان** او بوټو د مجیب الرحمن پر

هغه غوښتنه اعتراض وکړ چې د ختیځ لوري پر بېلولو او خپلواکۍ یې ټینګار کاوه. د ملي مجلس فعالېدل چې د پلان له مخې باید د ۱۹۷۱ زیږدیز کال د مارچ په میاشت کې پلي شوي وای وځنډېدل. تر دې پېښې وروسته مجیب الرحمن د اعتصاب اعلان وکړ او عوامي لیګ ګوند د ختیځ پاکستان د حکومت د تر لاسه کولو هڅه وکړه. ولس مشر یحیی خان د مجیب الرحمن سره د خبرو اترو لپاره د ختیځ پاکستان مرکز «ډاکې ته» لاړ.

مجیب الرحمن داسې کس نه و چې په اسانۍ سره تسلیم شي. هغه د پاکستان د رامنځته کېدو په لومړۍ لسیزه کې د دوو ډموکراتیکو حکومتونو پر مهال د کابینې وزیر و او له دې امله چې د ختیځ پاکستان د خپلواکۍ لپاره یې مبارزه کوله نو ځکه د پاکستان حکومت هغه بندي کړ.

یحیی خان په ۱۹۷۱ زیږدیز کال د مارچ په میاشت کې د هغې ستونزې په اړه چې مجلس ورسره مخامخ و، په دې هڅه کې شو چې د مجیب الرحمن د غوښتنې شخه لږ څه کم کړي، خو هېڅ یوه اړخ نه غوښتل چې خپل چانس له لاسه ورکړي. د مارچ په ۲۵ نېټه خبرې اترې پای ته ورسېدې.

یحیی خان تر خبرو اترو وروسته د مجیب الرحمن د بندي کولو امر ورکړ. مجیب الرحمن لوېدیځ پاکستان ته یوړل شو، یوه ورځ وروسته ختیځ پاکستان خپله خپلواکي اعلان کړه او دغه خپلواکه سیمه یې د **بنګله دېش** په نامه ونوموله.د پاکستان پوځ له لوېدیځ لوري د پاځون د ځپلو لپاره هوایي عملیات پیل کړل، په زرګونو بنګالیان ووژل شول او د لسو میلیونو په شمېر بنګالیان **هند** ته کډوال شوه. په پایله کې د ۱۹۷۳ زیږدیز کال د جولای په پای کې د پاکستان ملي مجلس ذوالفقار علي **بوټو** ته اجازه ورکړه چې د بنګله دېش خپلواکي په رسمیت وپېژني، په دې ډول د ۱۹۷۴ زیږدیز کال د فبرورۍ په میاشت کې د پاکستان دولت، بنګله دېش د خپلواک دولت په توګه په رسمیت وپېژنده.

وروسته له دې چې پاکستان په دوو هېوادونو یعنې پاکستان او بنګله دېش ووېشل شو، د دوه بېلو هېوادونو په توګه یې ځانګړې تګلارې غوره کړې. د یحیی خان له حکومت وروسته د پاکستان نور سیاسي مشران لکه **ایوب خان**، **ضیاءالحق**، **بېنظیر بوټو**، **نوازشریف**، **پرویز مشرف** او **اصف زرداري** یو په بل پسې واک ته ورسېدل او د پاکستان په سیاسي، ټولنیز او اقتصادي ژوندانه کې یې فعال رول ولوباوه.



مهاتما گاندي او خان عبدالغفار خان



### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د پاکستان د خپلواکۍ په اړه خپل معلومات په ټولګي کې وړاندې او دویمه ډله دې د پاکستان د خپلواکۍ غوښتونکو وتلو څېرو په اړه خبرې وکړي.



### پوښتنې

۱ – پاکستان په کوم کال له بریتانیا څخه خپله خپلواکي ترلاسه کړه؟

۲ – د پاکستان هېواد له څو ایالتونو نه جوړ دی؟ نومونه یې واخلئ.

۳ – د بنګله دېش هېواد ولې له پاکستان څخه خپلواکي واخیسته؟



### له ټولګي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د پاکستان د تاریخ په اړه معلومات راټول او په ټولګي کې دي وړاندې کړي.

# آیا د ایران د اسلامي جمهوري هېواد له تاریخ او موقعیت سره آشنا یاست؟




لکه څنګه چې پوهېږئ د ایران اسلامي جمهوریت د افغانستان یوګاونډي هېواد او لویدیځ لوری ته ترون دی. ایران د اسیا په لویه وچه کې موقعیت لري او د خاورې پراخوالی یې (۱۶۴۸۱۹۰) کیلو متر مربع دی. د وګړو شمېر یې شاوخوا اویا میلیونو (۷۰،۰۰۰،۰۰۰) تنو ته رسیږي. د دې هېواد رسمي دین اسلام او ژبه یې فارسي ده.

## ایران د پهلوي په پېر کې

تر لومړۍ نړیوالې جګړې وروسته د **ایران** د سیاسي، ټولنیزې او اقتصادي وضعې خرابوالی، په **روسیه** کې د سوسیالیستي نظام ټینګښت، ګاونډیو هېوادونو ته د دې ډول افکارو پراختیا، له نا امنۍ څخه د ایران د وګړو ناخوښی او نهیلی، د **احمدشاه قاجار** په واکمنۍ کې د امنیت نشتوالي، د **رضاخان پهلوي** په مشرۍ کودتا ته لاره هواره کړه.

کله چې رضاشاه پهلوي د انګرېزانو په مرسته د سلطنت پر ګدۍ کېښناست، نړۍ د دوو نړیوالو جګړو ترمنځ ښکېل وه. رضاشاه پهلوي د هېواد د اداري او اقتصادي چارو د سمون لپاره یو پراخه تګلاره ترکار لاندې ونیوله. ایران یو واحد اداري نظام، منظم پوځ او پرمختللی بانکي او اقتصادي سیستم نه درلود. نړیوال حالات هم ښه نه وو. ایران د شمال له لوري د **روسیې** او د سوېل له لوري د **بریتانیا** لخوا محاصره و. بریتانیا هڅه کوله د ایران د تسلط له لارې په هند او لېرې ختیځ کې ګټه واخلي. رضاشاه د خپلې واکمنۍ پر مهال ځواکمنه پادشاهي وکړه چې د هېواد ټولې چارې یې په خپله اداره کولې.

د رضاشاه د دورې مهم کارونه دا دي: د یو واحد او منظم پوځ جوړول، د قضایي سیستم نوي کول، د ټولنیزو او جزایي قوانینو ترتیبول، د وګړو د نفوس او احوالو د ساتنې د اداري بنسټ ایښودل، د پېژندګلوۍ د پاڼو وېشل، د ملکیتونو د ثبت د اداري بنسټ ایښودل، د رېل د پټلۍ غځول، د ټوکرانو د فابریکو جوړول، د ملي بانک بنسټ ایښودل، د پیسو چاپول، د کمپنیو تاسیسول، د ښارونو جوړول، د **تهران** د پوهنتون بنسټ ایښودل او د هجري کلیزې پر ځای د شمسي کلیزې استعمالول. له دې ټولو سره سره هم، ده په ډېره استبدادي توګه سلطنت وکړ. د ده د سلطنت په پیر کې ډېر خپلواکي غوښتونکي زنداني او یا اعدام شول. د ښځو حجاب منع شو او دیني علماء وځورول شول. رضاشاه په ۱۳۲۰ لمریز کال د متحدینو تر حملې وروسته له پاچاهۍ ګوښه شو او د هېواد حکومتي چارې یې خپل زوی **محمد رضا** ته وسپارلې چې د سلطنت ځای ناستی و او خپله د سوېلي افریقا پر لور لاړ.


محمد رضا شاه پهلوي

محمد رضاشاه پهلوي د رضاشاه زوی د پهلوي کورنۍ دویم پاچا دی چې د پلار تر استعفا وروسته په رسمي توګه واک ته ورسېد.

محمدرضاه شاه د خپل سلطنت په لومړیو کلونو کې له ډېرو ستونزو اوکړکېچونو سره مخامخ و، خو هغه بریالی شو چې یولړ مهمې چارې پیل کړي. د بېلګې په توګه د تهران کنفرانس، د ټلوېزیون د دستګاه بنسټ ایښودل، د مرکزي بانک تاسیس، ولسي جرګې او ملي شورا ته د ښځو د ټاکلو حق، د بندونو جوړول، دګازو د پایپونو جوړول، د روسیې، ایران او نورو هېوادونو ترمنځ د ډیپلوماټیکو اړیکو پراخوالی او ټینګښت، د هسته یي تاسیساتو رامنځته کول او د موټر جوړونې د فابریکو بنسټ ایښودل یادولای شو. خو د لوېدیځ سره د هغه اړیکې، د نامذهبي سیاستونو پلي کول او د سیاسي خپلواکۍ محدودول د ایران د روښانفکرو او روحانیانو د ناخوښۍ لامل شول. د هغه په دوره کې هم بندي خانې په خپلواکۍ غوښتونکیو ډکې وې او د هغوی اعدام او ځورونې جاري ساتل شوې وې چې په پای کې د ناخوښیو د دوام له امله د ۱۳۵۷ لمریز کـال د جدي په میاشت کې د ایران خلکو پاڅون وکړ، محمدرضاشاه له واکه لیرې او له خپلې ټولې کورنۍ سره **مصر** ته لاړ.


ایت الله سید روح الله خمیني

د ایران د ۱۳۵۷ کال پاڅون چې د **اسلامي پاڅون** (**انقلاب**) په نامه هم یادېږي، د **ایت الله خمیني** په مشرۍ او د ایران د ډېرو وګړو، سیاسي ګوندونو او د ایران د عالمانو او روښانفکرو په ګډون یو پاڅون و چې شاهي نظام یې رانسکور او د **اسلامي جمهوري** نظام د پلي کولو لپاره یې لاره هواره کړه.

د ایران خلکو د ۱۳۵۷ کال د غویي په میاشت کې د ټولټاکنو په ترځ کې په سلو کې د ۹۸ پرېکنده اکثریت د اسلامي جمهوري حکومت په توګه د خپل راتلونکي حکومتي نظام سره هوکړه وکړه او د ایران پادشاهي په رسمي توګه د ایران په اسلامي جمهوري بدله شوه.

د اسلامي انقلاب مشرانو له هرڅه دمخه پر درېو ټکو ټینګار کاوه، پر استبداد برلاسي، د بهرنیو دولتونو د لاس وهنې مخنیوی او د بهرنیو فرهنګونو د تېریو پر وړاندې مقاومت. همدغه درې لاملونه وو چې دګوندونو او بېلابېلو ډلو د یووالي لپاره یې مناسبه لاره برابره کړه، په دې ډول یې اسلامي انقلاب بریا ته ورساوه.

ایت الله سید روح الله خمیني د ایران مذهبي مشر د پنځلس کلو جلا والي څخه وروسته بېرته ایران ته راستون شو او ابوالحسن بني صدر د ایران د لومړي ولسمشر په توګه وټاکل شو. په ۱۳۶۸ لمریز کال کې امام خمیني مړ او د خبره ګانو جرګې، آیت الله خامنه ای د ایران د انقلاب مشر وټاکه.



### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، لومړۍ ډله دې د پهلوي دورې د ټولنیزو او سیاسي حالاتو او دویمه ډله دې د اسلامي انقلاب دلاملونو په اړه معلومات ورکړي.



### پوښتنې

۱- پهلوي کورنۍ څرنګه واک ته ورسېده؟

۲- د رضاشاه پهلوي مهم فعالیتونه په ګوته کړئ؟



### له ټولګي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې له خپلو مشرانو او لویانو څخه د اسلامي انقلاب د پېښېدو په اړه معلومات ترلاسه او بیا دې خپلو ټولګیوالو ته ووایي.

## آیا د ازبکستان هیواد په اړه معلومات لرئ؟




لکه څنګه چې پوهیږئ د ازبکستان جمهوریت یو له هغو هېوادونو څخه دی چې له افغانستان سره ګډه پوله لري، په دې لوست کې به د دې هېواد تاریخ په لنډه توګه ولولو.

د **ازبکستان** جمهوریت په **مرکزي اسیا** کې پروت دی چې د **افغانستان**، **تاجکستان**، **ترکمنستان**، **قرغېزستان** او **قزاقستان** له هېوادونو سره ګډه پوله لري. د ازبکستان پلازمېنه د **تاشکند** ښار دی. د ازبکستان د ځمکې پراخوالی ٤٠٠٤٤٧ کیلومتره مربع او د وګړو شمیر یې د ۲۰۰٦ زیږدیز کال د سرشمېرنې له مخې څه دپاسه اوه ویشت میلیونه درې سوه زره کسو ته رسېږي. رسمي ژبه یې **ازبکي** او **روسي** ده.

په لرغونو زمانو کې په ځانګړې ډول تر شپږمې زیږدیزې پېړۍ وروسته په ډېره کچه ترکي کوچیان د مرکزي اسیا ابادو سیمو ته وکوچېدل او د **فرغاني** په صحرا کې استوګن شول چې د وخت په تېرېدو سره، د هغه ځای اصلي اوسېدونکو **ترکي** عادتونه خپل کړل. ترکان په کلیو، باندېو او ښارونو کې استوګن شول، خو دې سیمې ته د ترکانو د مهاجرت د تاریخي بهیر پرخلاف، ګڼ شمېر خلکو د منځني اسیا په بېلابېلو برخو کې خپل پخوانی هویت وساته.

په لسمه زیږدیزې پېړۍ کې د اسلام په راتګ او خپرېدو سره، د اوسني ازبکستان سیمه د **سامانیانو** د قلمرو یوه برخه وه. د وخت په تېرېدو دغه سیمه په ترتیب سره د **غزنویانو**، **سلجوقیانو**، **خوارزمشاهانو**، **مغولانو**، **تېموریانو** تر واکمنۍ لاندې راغله. په اوسني وخت کې ازبکستان یوخپلواک جمهوریت او ۱۲ ولایتونه لري چې نومونه یې دا دي:

۱- تاشکند. ۲- اندیجان. ۳- بخارا. ۴- فرغانه. ۵- جیزک. ۶- نمنګان. ۷- نوایي. ۸- قشقه دریا.

۹-سمرقند. ۱۰- سردریا. ۱۱- سرخان دریا. ۱۲- خوارزم. ۱۳- د قره قالیاقستان خپلواکه جمهوریت.

د ازبکستان هېواد د **مسو، ډبرو سکرو** او **نفتو** کانونه لري. د **پولادو، نساجي** او **غذايي موادو** د صنعت په تولید کې يې ډېر پرمختګ کړی دی.

په نوولسمه پېړۍ کې، د ازبکستان لوېديځې او شمالي برخې د **خوارزم** د خانانو او د ازبکستان سوېلي برخې د **بخارا** د خانانو تر ولکې لاندې وې. د بخارا او خوارزم خانان په ۱۸۶۶کال زېږدیز کې د **روسیې** تر ولکې لاندې شول.



د امیر تیمور ګورګاني مقبره

په روسیې کې د ۱۹۱۷ زېږدیز د اکتوبر د میاشتې تر انقلاب وروسته، ازبکستان هم د روسیې له متحده سوسیالیستي جمهوریتونو څخه وګڼل شو. د پخوانی روسیې تر تجزیه کېدو وروسته ازبکستان هم په ۱۹۹۱ زېږدیز کال کې خپله سیاسي خپلواکي ترلاسه کړه او **اسلام کریموف** يې د حکومت د مشر په توګه وپېژندل شو.

### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي. لومړۍ ډله دې د ازبکستان د ولایتونو او دویمه ډله دې د هغه هېواد د صنعت په اړه یو له بله پوښتنې وکړي.

### پوښتنې

۱- ترکان څه وخت په مرکزي اسیا کې مېشت شول؟
۲- اوسنی ازبکستان څو ولایتونه لري؟
۳- د ازبکستان صنعتي تولیدات په ګوته کړئ؟

### له ټولګي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې له خپلو مشرانو څخه د اکتوبر د میاشتې د انقلاب، او د اسلامي فرهنګ او تمدن د یوه مهم مرکز بخارا په اړه معلومات ترلاسه کړي او بیا دې ټولګیوالو ته واوروي.

# آیا د تاجکستان له خلکو او تاریخ سره اشنا یی لرئ؟




پوهېږئ چې د شمال لور ته د تاجکستان جمهوريت زموږ له هېواد سره ګډه پوله لري. په دې لوست کې به د تاجکستان تاریخ ته يوه لنډه کتنه وکړو.

**تاجکستان** داسې يو هېواد دی چې په مرکزي اسيا کې د افغانستان شمال ته پروت دی. پلازمېنه یې د **دوشنبې** ښار، رسمي ژبه يې **تاجکي فارسي** او **روسي** ژبه هم په سوداګرۍ او حکومتي چارو کې کاروي. د پيسو واحد يې **ساماني** دی.

د پورتنۍ نقشې په پام کې نيولو سره پوهېږئ چې تاجکستان له کومو هېوادونو سره ګډه پوله لري.

د تاجکستان د خاورې پراخوالی يو سل او درې څلويښت زره ۱۴۳۱۰۰ کيلومتره مربع دی. د وګړو شمېر يې د ۲۰۰۶ زېږديز کال د سرشميرنې له مخې څه دپاسه اووه ميليونه او درې سوه شل زره تنو ته رسيږي.

د اوسني تاجکستان سيمه چې پخوا د **سغد** په نامه يادېده، د **لومړي داريوش** په وخت کې د **هخامنشيانو** د امپراطورۍ د قلمرو يوه برخه ګڼل کېدله او د **مقدوني سکندر** وروسته، د تاجکستان هېواد د **سلوکي**، **پارتي**، **کوشاني** او **ساساني** امپراطوريو يوه برخه وه. په ۷۱۵ زېږديز کال د امويانو تر ولکې لاندې راغی او د تاجکستان خلکو د اسلام سپېڅلي دين ته مخ راواړوه. په لسمه زېږديزه پېړۍ کې د **سامانيانو** د قلمرو يوه برخه وه او له سامانيانو له څخه وروسته په ترتيب سره **غوريانو**، **سلجوقيانو**، **خوارزمشاهيانو**، **مغولانو**، **تيموريانو** او **ازبک** واکمنو پر دې هېواد حکومت کړی دی.

په نولسمه زېږديزه پېړۍ کې د تاجکستان شمال (**خجند**) د **خوقند** د خانانو سوېلي سيمه يې د **بخارا** د خانانو يوه برخه ګڼل کېده. د بخارا خانان په ۱۸۶۶ زېږديز کال او د خوقند خانان په ۱۸۶۸ زېږديز کال کې د روسيې تر ولکې لاندې راغلل.

د اکتوبر د مياشتې له انقلاب وروسته، په ۱۹۲۸ زېږديز کال کې د تاجکستان هېواد د روسيې متحده سوسياليستي

جمهوریتونو له ډلې یوه جمهوریت وګڼل شو چې تر ۱۹۹۱ زیږدیز کـال پورې یې د روسیې متحده جمهوریتونو د اتحاد غړیتوب درلود. د روسیې د سوسیالیستي نظام تر نسکورېدو وروسته یې په ۱۹۹۱ زیږدیز کال خپله سیاسي خپلواکي ترلاسه کړه.

له خپلواکۍ اخیستلو وروسته، د تاجکستان د دولت او د هغه اسلام پلوه مخالفینو ترمنځ کورنۍ جګړې پیل شوې چې د مخالفینو مشري د **عبدالله نوري** پر غاړه وه. په دې جګړو کې د پنځوس زره خلکو څخه زیات مړه او د اووه سوه زره کسانو زیات وګړي د خپلو کورونو پرېښودلو ته اړ شول. چې په پایله کې د ملګرو ملتونو په منځګړیتوب د سولې تړون د ښکېلو ډلو ترمنځ لاسلیک شوه.


د شاه اسماعیل مقبره

د تاجکستان هېواد درې ایالتونه او یوه خپلواکه سیمه لري چې عبارت دي له:

۱. د ختلان ولایت چې مرکز یې قرغان تپه دی.
۲. د سغد ولایت چې مرکز یې خجند دی.
۳. د قراتګین ایالت چې مرکز یې کافرنهان دی.
٤. د کوهستان بدخشان خپلواکه سیمه چې مرکز یې خاروغ دی.

تاجکستان د پخواني **شوروي** اتحاد د جمهوریتونو له ډلې یو وروسته پاتې جمهوریت دی. د زیات شمیر خلکو دین یې اسلام دی. **ازبکان**، **روسان** او یوشمېر **اوکرایني**، **چینایي** او **تاتاري** وګړي هم په دې هېواد کې اوسېږي. د تاجکستان مهم صنایع **برېښنا** او د **ډبرو سکرو** تولید دی.

### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې په دوو ډلو ووېشل شي، لومړۍ ډله دې د ژبې او دویمه ډله دې د اسلام د تاریخ په اړه یو له بل څخه پوښتنې وکړي.

### پوښتنې

۱- د نقشې پرمخ وښایاست چې د تاجکستان هېواد د منځنۍ اسیا په کومه برخه کې پروت دی؟
۲- د پخواني شوروي اتحاد تر نسکورېدو وروسته په تاجکستان کې کوم بدلونونه منځته راغلل؟
۳- کومو مشهورو کورنیو پر تاجکستان واکمني کړې ده؟

### له ټولګي نه د باندې فعالیت

زده‌کوونکي دې د اکتوبر د میاشتې د انقلاب او پر تاجکستان د هغه د اغیز په اړه له مشرانو نه معلومات ترلاسه کړي او په ټولګي کې دې ووایي.

## آیا د ترکمنستان له خلکو او تاریخ سره آشنایي لرئ؟

د ترکمنستان جمهوریت د افغانستان د ګاونډیو هېوادونو له ډلې څخه دی. په دې لوست کې به د دې هېواد تاریخ په لنډ ډول وڅېړو.




د **ترکمنستان** هېواد د هغو هېوادونو له ډلې څخه دی چې په دې وروستیو وختوکې یې له پخوانۍ **روسیې** نه خپلواکي ترلاسه کړې ده. اوس نقشې ته وګورئ او د ترکمنستان ګاونډي هېوادونه وښایاست.

د دې هېواد د خلکو دین اسلام، ژبه یې **ترکمني** او **روسي** ده. د ترکمنستان د خاورې پراخوالی ۴۸۸۱۰۰ کیلومتره مربع دی. د وګړو شمېر یې د ۲۰۰۶ کال د سرشمېرنې له مخې پنځه میلیونه او اوه سوه نه وشت زرو دی. ۷۲ په سلو کې وګړي یې په ترکمني ژبه خبرې کوي او نږدې ۹۰ په سلو کې وګړي یې ترکمنان دي. یوشمېر **روسان، ازبکان** او **قزاقان** هم په دې هېواد کې مېشت دي.

ترکمنستان له اقتصادي اړخه د ودې او پرمختګ په لور ګام اخلي. د **پنبې، نفتو** او **ګازو** د صنعت په تولید کې مخکښ دی او د نړۍ یو پر درېیمه برخه ګاز لري، یوازې د ګازو د تولید او **روسیې، اوکراین** او یوشمېر نورو هېوادونو ته د صادرولو له لارې ډېر زیات عاید ترلاسه کوي.

د ترکمنستان جمهوریت د ۱۹۹۱ زېږدیز کال د اکتوبر په میاشت کې د ټول پوښتنې په پایله کې خپله سیاسي خپلواکي اعلان کړه. نوی اساسي قانون یې په ۱۹۹۲ زېږدیز کال د ترکمنستان د مجلس له خوا تصویب شو.

د نوي اساسي قانون پر بنسټ، ترکمنستان یو جمهوري نظام لرونکی هېواد دی. په دې هېواد کې ولسمشر واک لري چې د قضائیه او اجرائیه قواوو مسوولین او هم د مجلس د ټولټاکنو نوماندان وټاکي. د ترکمنستان د اساسي قانون پر بنسټ ولسمشر د وزیرانو د شورا مشر هم دی. په بهرني سیاست کې ترکمنستان هغه هېواد دی چې دناپېیلتوب دریځ یې غوره کړی دی. د ترکمنستان دغه دریځ په ۱۹۹۵ زېږدیز کال د ملګرو ملتونو د عمومي مجلس له خوا تصویب شو.

ترکمنستان نړۍ ته د آسیا په دغې پېچلې سیمې کې له پرمختګ سره یوځای د سولې او کرارۍ وړاندیز کړی دی. د ناپېیلتوب د دریځ تر تصویب وروسته په نړیواله کچه د ترکمنستان د ملي ګټو ستراتېژیک موضوعات حل کړی شول. د ډسمبر دولسمه د دغه هېواد د ملي ورځې په توګه ټاکل شوې ده.

ترکمنستان د سیمه ییزو همکاریو فعاله پراختیاوو ته ژمن دی چې داکار یې د **ایکو** دسازمان په فعالیتونو کې لیدلای شو. د ایکوغړي هېوادونه چې څه دپاسه ۳۱۰ میلیونه وګړي لري، په نړیوالو اړیکو کې یې د یوې اغېزناکې ادارې په توګه ځان څرګند کړی دی چې داکارد ځانګړو تاریخي او فرهنګي ځانګړتیاوو په لرلو سره د نوي سیمه ییزې ټولنې د رامنځته کېدو نښه ده.

### په ټولګي کې فعالیت

زده‌کوونکي دې د ترکمنستان د موقعیت، ژبو او نورو مېشتو ملیتونو په اړه له یوبل څخه پوښتنې وکړي.

### پوښتنې

۱- د ترکمنستان هېواد د آسیا په کومه برخه کې پروت دی؟
۲- د ترکمنستان هېواد په کوم کال کې خپلواکي ترلاسه کړه؟